# د زکات مسائل

مؤلف

## الحاج مفتي جان محمد صاحب

خـــادم

## دارالافتاء نعمانيه

کندهار، افغانستان

# د كتاب اړوند

د كتاب نوم : د زكات مسائل

د مؤلف نوم: الحاج مفتي جان محمدصاحب

فاضل دارالعلوم كراچي، خادم دارالافتاء نعمانيه، كندهار افغانستان

د مؤلف سره اړيكي: ۰۷۰۰۳٦۰۱٦۰ -۰۷۹۹۲۸۸۰۸۸

د چاپ نېټه: ۱۳۹۱هـ ش مطابق ۱۴۳۴هـ ق

د چاپ ځل: اول

ضخامت : ۱۴۵صفحات

چاپوونكى: احمد شاهي كتب خانه

۰۷۰۰۳۲۱۴۷۹

# اهدا

د

وَقُل رَّبِّ ارْحَمْهُمَا كَمَا رَبَّيَانِي

صَغِيرًا د مصداق او هغه فطري محسنينو په نوم چي زه يې د الله ﷻ دين ته وقف او د زړه په وينو، مباركو اوښكو او مقبولو دعاګانو پر دې منصب فائز كړم.

# دکتاب تفصیلي فهرست

# سریزه

حامداً و مصلياً و مسلماً

يوازنی نظام، طريقه او لار چي تر قيامته د خپل ثقت او پوخ والي ننګونه په خپله لمړنۍ مبارکه صفحه ټول عالم ته وړاندي (ذَٰلِكَ ٱلۡكِتَٰبُ لَا رَيۡبَۛ فِيهِۛ) او د تقوا په شرط ټولو انسانانو او جناتو ته د خپل هدف، سعادت او همېشنۍ کاميابۍ په لور د رسولو تضمين ورکړی (هُدٗى لِّلۡمُتَّقِينَ) او زموږ د ژوندانه پر ټولو انفرادي او ټولنيزو حرکاتو او خوځښتونو باندي نور خپروي هغه اسلام، محمدي شريعت او قران پاک دئ.

څرنګه چي اسلام د يوه کامل شريعت نوم او تر ټولو زموږ د ژوندانه د ښې رهبرۍ او تنظيم قابل او د منلو حقدار دی لازمه ده ټول اختياري امور مو اسلامي، پټ او ښکاره مو شرعي، تصرفات او فعاليتونه مو د امت د علماوو تر نظر لاندي د محمديت ښکارندوی وي په نتيجه کي علماء کرام مکلف دي.

د امت ټول مسائل د قران او حديث په رڼا کښي حل او هر وخت د دوی لارښوونه وکړي، د همدې مسؤليت په درکولو غواړم مورنۍ ژبه پښتو کښي د زکات او صدقې په اړه لنډه او ساده ليکنه د ديني مينه والو مخ ته وړاندي کړم. په دې اړه زما توفيق، توکل او انابت يوازي پر الله ﷻ دی. آمين

وما توفيقي الا بالله عليه توکلت و اليه انيب

جان محمد

## اول باب

### د زکوة لغوي تعریف:

زکوة د نما او پاکوالي په معنی دئ ځکه نو د زکوة ورکول د نماء، پاکۍ او د مال د زیاتوالي سبب دئ[۱].

### د زکوة شرعي تعریف:

د زکوة شرعي معنا د یو مقدار مال یو څوک مالک ګرځول کوم چې شارع ټاکلي وي[۲].

### د زکوة اثبات په آیت سره:

په قرآن کریم کې د زکوة حکم ۸۲ ځله ذکر سوی دئ او خورا زیات ټینګار باندې سوی دئ، د ټولو ځایونو لیکل به بحث ډېر اوږد کړي مګر دوه آیاتونه په لاندې ډول دي:

**اول آیت**: وَءَاتُواْ ٱلزَّكَوٰةَ ...[البقرة: ۴۳]

ژباړه: او تاسو ورکړئ زکات ....

**دوهم آیت**: خُذۡ مِنۡ أَمۡوَٰلِهِمۡ صَدَقَةٗ تُطَهِّرُهُمۡ وَتُزَكِّيهِم بِهَا (التوبة: ۱۰۳)

ژباړه: واخله (اې محمده!) له مالونو د دوی صدقه (زکوة یا خیرات) چې ښه پاک کړې ته دوی له ګناهونو (یا له محبته د مال) او بابرکته کړې ته دوی د هغه په وسیله.

---

[۱] (هي لغة الطهارة والنماء) الدرالمختار: دوهم ټوک – ۲۵۶ مخ.

[۲] و شرعاً تملیک جزء مال عینه الشارع (الدرالمختار: دوهم ټوک – ۲۵۶ مخ).

## د زکوة اثبات په احادیثو سره:

عبدالله بن عمر رضي الله عنه فرمايي چي نبي کريم صلی الله علیه وسلم وفرمايل: اسلام پر پنځو شيانو بناء سوی دئ: کلمهٔ شهادت، لمونځ کول، زکوة ورکول، حج کول او د روژې د مياشتي روژې نيول[1].

په دې اړه حديثونه ډېر زيات دي خو د اثبات لپاره دغه يو هم کافي دئ.

## د زکوة اثبات په اجماع سره:

د ټول امت پر دې خبره باندي اجماع ده چي زکوة فرض دئ[2].

## د زکوة اثبات په عقل سره:

د زکوة اثبات عقلاً هم په څو وجهو سره دئ:

**اول**: د زکوة په ادا کولو کي د ضعيف او بېچاره کومک کول دي.

**دوهم**: زکوة انسان د ګناهونو څخه پاکوي او د سخا صفت پکښي پيدا کوي او بخل څني ليري کوي.

**دريم**: الله تعالی غنيانو ته ډول ډول نعمتونه ورکړي دي او د نعمتو شکر فرض دئ نو زکوة فقير ته ورکول د نعمت شکر دئ[3].

---

[1] [قال عبدالله رضي الله عنه قال رسول الله صلی الله علیه وسلم بني الاسلام على خمس شهادة ... و ايتاء الزكوة....] صحيح المسلم: دوهم ټوک – ۳۲ مخ.

[2] [واما الاجماع: فلان الامة اجمعت على فرضيتها] بدائع الصنائع: لومړی ټوک – ۷۷ مخ.

[3] [احدها ان اداء الزكاة من باب اعانة الضعيف واغاثة اللهيف... والثاني: ان الزكاة تطهر نفس المؤدي عن انجاس الذنوب ... والثالث: ان الله تعالى قد انعم على الاغنياء و فضلهم بصنوف النعمة ...] بدائع الصنائع: لومړی ټوک – ۷۷ مخ.

# د زکوة وجوب

## د زکوة حکم :

د زکوة حکم په قرآن مجید کي د لمانځه سره متصل ۸۲ ځایه راغلی دئ او په دوهم هجري کال کي فرض سوی دئ[۱].

## پر انبیاوو زکوة :

زکوة پر نبیانو واجب نه دئ[۲].

## پر لېوني او نابالغ زکوة :

د لېوني او نابالغ په مال کي زکوة واجب نه دئ او په نصوصو کي دوی غیر مکلف بلل سوي دي[۳].

## زکوة هر کال ورکول واجب دی :

زکوة هر کال ورکول واجب دي[۴].

## د نصاب د شروع وخت معلوم نه وي :

که چیري دا معلومه نه وي چي د کوم وخت څخه یو څوک د نصاب مالک سوی دئ نو د غالب ګمان یا د قرائنو څخه دي اندازه ولګوي بیا دي زکوة ورکړي او احتیاطاً دي د یو څه زیات وخت تعین وکړي[۵].

---

[۱] قرنها بالصلاة في اثنین و ثمانین موضعا في التنزیل دلیل على کمال الاتصال بینهما وفرضت في السنة الثانیة قبل فرض رمضان. (الدرالمختار : دوهم ټوک – ۲۵۶ مخ).

[۲] ولاتجب على الانبیاء اجماعا. (الدرالمختار : دوهم ټوک – ۲۵۶ مخ).

[۳] فلاتجب على مجنون و صبي لانهاعبادة محضة ولیسا مخاطبین بها (ردالمحتار : دوهم ټوک – ۲۵۸ مخ).

[۴] و تجب على الفور عند تمام الحول (هندیه : لومړی ټوک – ۱۷۰ مخ).

[۵] اي سبب افتراضها ملک نصاب حولي... و شرط افتراض ادائها حولان الحول و هو في ملکه ... (درمختار مع ردالمحتار : دوهم ټوک – ۲۵۹ مخ). (و مثله فی الاشباه و النظائر : ۷۶ مخ).

## د هر ډول مال زکوة په جلا جلا وختو کي ورکول:

په جلا جلا وختو کي د جلا جلا سامانو زکوة ورکول صحيح دي، په دې شرط چي نصاب ته رسېدلي وي[۱].

## د قرض حسنه زکوة:

که يو چا په قرض حسن باندي پيسې ورکړي وي نو د ترلاسه کولو وروسته ئې زکوة ستة او که د ترلاسه کېدو مخکي يو څوک زکوة ورکړي هم صحيح دئ[۲].

## مهر د زکوة ورکولو مانع نه دئ:

عموماً چي کوم مهر د نکاح تړلو يو څه موده وروسته ورکول کېږي دې ته مهر مؤجل وايي د صحيح قول موافق دغه مهر د زکوة مانع نه دئ، مثلاً يو څوک شل زره افغانۍ لري پنځه زره د مهر باندي پور دي نو دغه سړی به پوره د شلو زرو زکوة ورکوي[۳].

## د خاوند بې اجازې د ښځي زکوة ورکول :

ښځه د خپلو زېوراتو او نورو سامانو زکوة د خاوند بې اجازې ورکولای سي اجازې ته ضرورت نسته[۴].

---

[۱] او في عرض تجارة قيمته نصاب ... (درمختار :مخ ۲۹۸، ټوک ۲).

[۲] الزکوة واجبة على الحر العاقل ... اذا ملک نصاباً ملکا تاما و حال عليه الحول. (هدايه: دوهم ټوک۳ -مخ). فاذا کانت ماتين و حال عليه الحول ففيها خمسة دراهم... (هدايه: دوهم ټوک۳۵ -مخ).

[۳] عن دين له مطالب من جهة العباد ،...... او مؤجلا ولو صداق زوجته المؤجل.... والصحيح انه غير مانع. (درمختار مع ردالمحتار: دوهم ټوک۲۶۱ -مخ ) .

[۴] جهز ابنته بجهاز وسلمهاذلک ليس له الاسترداد منها ولالورثته بعده ان سلمها ذلک في صحته بل تختص به وبه يفتي (درمختار: څلورم ټوک -۳۰۴مخ).

## پر امين باندي د امانت د مال زكوة :

د ميراث مال تقسيم سوی نه وي د يوه وارث په تصرف كي وي او وارثان ټول بالغان وي نو زكوة يوازي پر هغه وارث چي مال ئې په قبضه كي دئ واجب نه دئ بلكي د ټولو مالكانو پر ذمه زكوة سته او كه چيري هغه مال سپين يا سره زر وي نو پر هر وارث د هغه د حصې په اندازه واجب دئ كله چي حصه ورورسيدل او هغه مال د نصاب په اندازه وو نو د تېر وخت زكوة به هم وركوي[1].

## د حفاظت د مال زكوة:

كه يو نفر بل چا ته پيسې وركړي وي چي حفاظت ئې كوه او دا اجازه ئې هم ورته كړې وه چي هر كار په كوه خو دغه نفر مالک ته څو كاله وروسته يو سرای ور رانيوی نو مالک به د تېرو سوو كلونو زكوة وركړي[2].

## د مدرسې پر چنده باندي زكوة :

د مدرسې چنده چي د نصاب په اندازه جمع سي او كال باندي تېر سي بيا هم زكوة پر نسته[3].

## په حرام مال كي زكوة :

حرام مال ټوله خيراتول لازمي دي په هغه كي زكوة نسته مګر كه حرام

---

[1] الاالذهب والفضة والسائمة لما في الخانية لو ورث سائمة لزمه زكوتها بعد حول نواه او لا. (درمختار: دوهم ټوک - ۲۷۳ مخ).

[2] و لو كان الدين على مقر ... فوصل الى ملكه لزم زكاة ما مضى (درمختار: دوهم ټوک - ۲٦٦ مخ).

[3] و سببه اي سبب افتراضها ملک نصاب حولى فلا زكاة في سوائم الوقف والخيل المسبلة لعدم الملک (درمختار مع ردالمحتار: دوهم ټوک - ۲۵۹ مخ).

مال د بل حلال مال سره ګډ سي نو بیا زکوة پکښې لازم دئ[۱].

**د سرای او مځکي زکوة:**

که سرای یا مځکه په کرایه ورکول سوي وي نو کومه آمدني چي راځي د کال تر پوره کېدلو وروسته پر هغه آمدني چي نصاب ته رسېدلې وي زکوة واجب دئ نه پر مالیت باندي[۲].

**د کوروالا په نصاب سره خاوند:**

د خپلي ښځي په نصاب سره خاوند صاحب نصاب نه سي کېدلای ځکه نو نه زکوة او نه اختری پر هغه واجب دئ[۳].

**مقروض چي خپله ذاتي آمدني ولري:**

که پر یو چا باندي قرض وي او د هغه سرمایه او آمدني تر قرض کمه وي نو زکوة پر هغه واجب نه دئ[۴].

**د زکوة په ادا کولو کي د نیت اهمیت:**

د زکوة په ادا کولو کي نیت ډیر ضروري دئ که یو چا د پیسو د ورکولو په وخت کي د خیرات یا صدقې نیت کړی وي نو تر ادا کولو وروسته د زکوة په نیت سره زکوة نه ادا کېږي مګر که د یو چا د ورکولو په وخت کي د هیڅ شي نیت نه وو خو وروسته ئې د زکوة نیت وکړ او

---

[۱] ولو خلط السلطان المال المغصوب بماله ملکه فتجب الزکاة فیه و یورث عنه (درمختار: دوهم ټوک – ۲۹۰ مخ).

[۲] ولا زکاة علی مکاتب ... و اثاث المنزل ودوراالسکنی و نحوها کثیاب البدن الغیر المحتاج الیها وکالحوانیت والعقارات (درمختار: دوهم ټوک – ۲٦۳ مخ).

[۳] الزکوة واجبة علی الحر العاقل البالغ المسلم اذا ملک نصابا تاما وحال علیه الحول (هدایه: دوهم ټوک – ۳ مخ).

[۴] و من کان علیه دین یحیط بماله فلا زکوة علیه (هدایه: دوهم ټوک – ٦ مخ).

پیسې د فقیر یا مسکین په ملک کې وي نو په داسې صورت کې دغه پیسې په زکوة کې شمېرل کېږي[۱].

**د زکوة د فرضیت لپاره د کال تېرېدل شرط دئ:**

که یو څوک خپل ټول مال په قبضه کې راولي او کال باندې تېر سي نو زکوة فرض دئ خو د کال د تېرېدلو د مخه زکاة نه فرض کېږي[۲].

**د زکوة په ورکولو کې د قمري کال اعتبار:**

د زکوة په فرضیت کې د اسلامي (هجري قمري) میاشتو اعتبار دئ او د فقهاوو د ویناوو مطابق د قمري کال مقدار درې سوه څلور پنځوس (۳۵۴) ورځې اته ساعته او اته څلوېښت دقیقې دي[۳].

**زکوة به سمدستي ورکوي او که په ځنډ سره:**

زکوة سمدستي ورکول واجب دي او که په ځنډ سره، په دې مسئله کې د فقهاوو اختلاف دئ کوم امامان چې په ځنډ ورکولو قائل دي د هغوی په نظر په وقفه وقفه زکوة ورکول جائز دئ او کوم امامان چې د سمدستي ورکولو قائل دي د هغوی په نظر بیا په ځنډ سره ګناه ده خو د فتاوی هندیه مصنف سمدستي ورکول صحیح بللي دي او ابن الهمام رحمة الله علیه د امام ابوحنیفة رحمة الله علیه قول رانقل کړی دئ چې بې له عذره ځنډ

---

[۱] و شرط صحة ادائها نية مقارنة له اي للاداء و لوکانت المقارنة حکما کما لو دفع بلانية ثم نوی والمال قائم في يد الفقير (درمختار: دوهم ټوک – ۲۶۸ مخ). کذا في الهنديه: اول ټوک – ۱۷۱ مخ.

[۲] و سببه ای سبب افتراضها ملک نصاب حولی نسبة للحول لحولانه عليه (درمختار: دوهم ټوک – ۲۵۹ مخ).

[۳] والسنة القمرية اثنا عشر شهرا قمريا و مدتها ثلث مائة واربعة وخمسون يوماً و ثلث يوم و ثلث عشر يوم (شرح الوقايه: دوهم ټوک – ۱۴۱ مخ).

کول مکروه تحريمي دي[۱].

**صاحب نصاب سړي ته دکال په منځ کي مال راغلی:**

د زکوة پر نصاب باندي کال تېرېدل ضروري دي اوس که يو څوک د کال په منځ کي نور مال وګټي نو هغه مال به هم د هغه اصلي نصاب سره يو ځای کړي او زکوة به ورکړي ځکه چي دا ضروري نه ده چي کوم مال د کال په منځ کي راغلی وي پر هغه هم پوره کال تېر سي[۲].

**د زکوة په ادا کولو کي د وخت ټاکل:**

د کال په شروع کي د کال د پوره کېدلو سره سمدستي زکوة ادا کول واجب دي ځکه نو د خاصي مياشتي ټاکل نسته په هره مياشت کي چي زکوة ادا کوي مګر دا چي د روژې په مياشت کي عبادات ډېره اهمه درجه لري نو په دې خاطر په دغه مياشت کي ډېر خلګ يا خو خپل زکوة وځنډوي ادا ئې کړي او يا ئې د وخت ترمخه په دغه مياشت کي ادا کړي[۳].

**که چا زکوة ادا نه کړ:**

زکوة د واجب کېدو سره سمدستي بايد ادا کړه سي که بيا هم يو چا پر خپل وخت ادا نه کړ نو ذمه ئې فارغه نه ده ځکه چي زکوة د خاص وخت

---

[۱] و تجب على الفور عند تمام الحول حتى يا ثم بتاخيره من غير عذر وفي رواية الرازي على التراخي حتى ياثم عند الموت والاول اصح (هنديه: اول ټوک – ۱۷۰ مخ). كذا فى فتح القدير عن ابي حنيفة رحمة الله عليه انه يكره ان يؤخرها من غير عذر. فان كراهة التحريم هى المحمل عند اطلاق اسمها عنهم – دوهم ټوک – ۱٦٦ مخ).

[۲] و شرط وجوب ادائها حولان الحول على النصاب الاصلي و اما المستفاد في اثناء الحول فيضم الي مجانسه و يزكي بتمام الحول الاصلي سواء استفيد بتجارة او ميراث او غيره (مراقي الفلاح: ص ۷۱۴). كذا فى درمختار: دوهم ټوک – ۲۸۸ مخ

[۳] اي سبب افتراضها ملک نصاب حولي نسبة للحول لحولانه عليه (درمختار: ج ۲، ص ۲۵۹).

سره اړه نه لري[۱].

**د سرای نه درلودل د زکوة مانع نه دي:**

که يو څوک د نصاب مالک وي او دغه پيسې ئې تر حاجت اصليه زياتي وي نو دغه سړی د زکوة مستحق نه دئ بلکي دی به خپله زکوة ورکوي خو څوک چي ذاتي سرای نه لري نو دغه داسي عذر نه دئ چي د هغه په وجه دي غريب و بلل سي تر څو چي دغه پيسې ئې مصرف کړي نه وي تر ضرورت زياتي شمارل کيږي[۲].

**د زکوة په ورکولو کي هر وار نيت ضروري دئ او که نه؟**

که يو چا د مال د جلا کېدلو په وخت کي نيت د زکوة کړی وو او بيا ئې لږ لږ مصرفوی نو دوهم وار نيت ته ضرورت نسته د مال د جلا کېدو په وخت کي هغه يو وار نيت کافي دئ او که يو چا اول نيت نه وي کړی نو د ورکولو په وخت کي به نيت کوي که نه نو زکوة نه صحيح کيږي[۳].

**د حوائج اصليه لپاره د ساتل سوو پيسو زکوة:**

که د يو چا پيسې په حوائجو اصليه کي مصروف او مشغولي وې نو يقيناً په هغو پيسو کي زکوة واجب نه دئ، مګر که يو سړی د ضرورت د پوره کولو لپاره مثلاً د سرای، کتابونو، اسلحې او داسي نورو شيانو

---

[۱] و تجب على الفور عند تمام الحول حتي ياثم بتاخيره من غير عذر و في رواية الرازي علي التراخي حتي ياثم عند الموت والاول اصح (هنديه: اول ټوک – ۱۷۰ مخ)

[۲] و لا الى غني يملک قدر نصاب فارغ عن حاجته الاصلية من اي مال كان (درمختار: دوهم ټوک – ۳۴۷ مخ). و مثله فى خلاصة الفتاوى: اول ټوک – ۲۴۲ مخ.

[۳] قال كلما تصدقت في هذه السنة فهو عن الزكوة ثم جعل يتصدق ولا يحضره النية ان كان افرز جملة من المال في صرة و قال في وقت الافراز ذلک وقع الكل عن الصدقة والا لا لاقتران النية بعزل الواجب في الاول (بزازيه: څلورم ټوک – ۸۷ مخ).

لپاره پیسې جمع کړي وي او کال هم باندي تېر سي نو د داسي پیسو د زکوة د وجوب په اړه ځیني فقهاء وایي چي دغه پیسې حکماً په ضروریاتو کي مصروفي دي ځکه نو د کال د تېرېدلو باوجود زکوة واجب نه دئ، او ځیني فقهاء وایي چي په داسي پیسو کي په هر صورت کي زکوة واجب دئ که د تجارت لپاره وي او که د نفقې لپاره او که د سرای وغیره لپاره او د فقهاء کرامو رجحان هم د دغه قول و طرف ته دئ[۱].

**تر حوائج اصلیه پر زیاتو پیسو زکوة:**

که د یو چا سره دومره پیسې وي چي نصاب ته رسېږي او تر ټولو ضروري اخراجاتو زیاتي وي نو د کال تر تېرېدو وروسته زکوة وربانديي واجب دئ او د پیسو د زکوة په ایستلو کي د سپینو او سرو زرو قیمت اعتبار لري ځکه چي دغه قیمت کله لوړېږي او کله کمېږي چي پیسې هم ورسره زیاتېږي او کمېږي[۲].

**د زکوة یو ځای ادا کول:**

د زکوة یکمشت (یو ځای) ادا کول ضروري نه دي بلکي په قسطو سره هم ادا کېږي البته د یو ځای ورکولو په وخت کي نیت ضروري دئ که نه نو په هر قسط کي به نیت کوي[۳].

---

[۱] فاذا کان له دراهم مستحقة یصرفها الی تلک الحوائج صارت کالمعدومة ویخالف ما في المعراج في فصل زکاة العروض ان الزکاة تجب في النقد کیفما امسکه للنماء او النفقة (ردالمحتار: دوهم ټوک – ۲۶۲ مخ). کذا فی حاشیة الطحطاوي علی مراقی الفلاح: دوهم ټوک – ۳۵۷ مخ.

[۲] و ملک نصاب حولی تام فارغ عن الدین وحوائجه الاصلیة نامٍ ولو تقدیرا (بحر رائق: دوهم ټوک – ۳۵۵ مخ).

[۳] او مقارنة بعزل ما وجب کله او بعضه ولایخرج عن العهدة بالعزل بل بالاداء للفقیر (درمختار: دوهم ټوک – ۲۶۹ مخ).

## د حج لپاره په جمع سوو پيسو کي زکوة:

د حج لپاره د پيسو په ايښودلو سره زکوة نه ساقطېږي تر څو چي دغه پيسې په حج کي مصرف سوي نه وي او تر ضروورياتو چي زياتي وي نصاب ته رسېدلي وي او کال باندي تېر سوی وي زکوة واجب دئ[۱].

## د کوزدې يا واده پر سامان زکوة:

د کوزدې يا واده لپاره سامان چونکه د کور په سامان کي داخل دئ او د کور په سامان باندي زکوة لازم نه دئ ځکه نو پر هغه سامان چي د دسمال يا واده لپاره جمع سوی وي زکوة نسته[۲].

## د واده يا کوزدې په پيسو کي زکوة:

د واده او کوزدې لپاره په جمع سوو پيسو کي تر څو چي مصرف سوي نه وي د واده د ضروورياتو په وجه زکوة نه ساقطېږي او پر دغه سړي زکوة واجب دئ، همدارنګه که پلار د خپلو اولادو د ودو لپاره پيسې جمع کړي وي او د زکوة نصاب ته رسېږي نو د کال تر تېرېدلو وروسته په دغه پيسو کي زکوة واجب دئ[۳].

## د کور د استعمال په شيانو کي زکوة:

د ضرورت په وخت کي چي د کوم سامان د استعمال اړتيا وي هغه د

---

[۱] ومخالفة ما في المعراج في فصل زكوة العروض ان الزكوة تجب في النقد كيفما امسكه للنماء او للنفقة (ردالمحتار: دوهم ټوک – ۲٦۲ مخ).

[۲] وليس في دورالسكنى و ثياب البدن واثاث المنازل ودواب الركوب وعبيد الخدمة وسلاح الاستعمال زكوة (هدايه: دوهم ټوک – ۴۹۴ مخ).

[۳] و سبب لزوم ادائها توجه الخطاب يعني قوله تعالى واتوالزكوة وشرطه اي شرط افتراض ادائهاحولان الحول وهو في ملكه وثمنية المال كالدراهم والدنانير لتعينهماللتجارة باصل الخلقة فتلزم الزكوة كيفما امسكهاولو لنفقة عياله (درمختار: دوهم ټوک – ۲٦۷ مخ).

کورني ضروري شيانو په زمره کي شمېرل کېږي څوک زيات ميلمانه لري د هغو لپاره زيات سامان ايږدي ځکه چي په معاشره کي وخت، حالات او تعلقات يو خاص معيار نه لري، البته کوم شی چي د کور د استعمال په نامه رانيول کېږي که د ضرورت لپاره وي او که د ضرورت څخه زيات وي مګر د تجارت په نيت ئې نه وي رانيولی نو په هغه کي زکوة واجب نه دئ[۱].

**د پلار د مال څخه د زوی زکوة ورکول:**

د پلار د مال څخه زوی بې له اجازې زکوة نه سي ورکولای البته که زوی بې له اجازې د مال څخه زکوة ورکړي او بيا پلار داسي حالت وليدی چي هغه مال د فقير په لاس کي وو نو زکوة ادا کېږي[۲].

**د مړي د طرفه زکوة ورکول:**

که چيري مړي د مرګ په وخت کي وصيت کړی وو چي پر ما باندي دومره زکوة پاته دئ نو د ميراث د دريمي حصې څخه په وصيت باندي عمل کول واجب دي پر وارثانو ضروري ده چي د مړي د غاړي خلاصولو لپاره په هغه وصيت عمل وکړي او که مړي وصيت نه وو کړی نو که څه هم پر وارثانو ضروري نه ده مګر د ادا کولو په صورت کي د غاړي

---

[۱] فليس في دور السکني وثياب البدن واثاث المنازل و دواب الرکوب و عبيد الخدمة و سلاح الاستعمال زکوة. (هنديه: اول ټوک – ۱۷۲ مخ).

[۲] رجل ادی زکوة غيره عن مال ذلک الغير فاجازه المالک فان کان المال قائما في يد الفقير جاز والا فلا (هنديه: اول ټوک – ۱۷۱ مخ).

خلاصېدو امید سته[۱].

## د کمپټۍ په پیسو کې زکوة:

کمپټۍ دې ته ویل کېږي مثلاً لس نفره هره میاشت سل سل افغانۍ جمع کوي د میاشتې په آخر کې قرعه اندازي (هسکه) کېږي چې د هر چا نوم راووتی دغه پیسې د هغه نفر دي اوس نو که یو څوک دغه پیسې د نصاب سره یو ځای کړي زکوة به ورکړي او که چیرې تر مخه څوک صاحب نصاب نه وو خو د کمپټۍ د پیسو په وجه صاحب نصاب سو نو بیا د کال تر تېرېدلو وروسته زکوة واجب دئ دا خبره ضروري ده که دغه پیسې څوک یو ځای واخلي او که ئې په قسطو واخلي[۲].

## پر پوروړي باندي زکوة:

که پر یو چا باندي دومره پور وي چې د ده ټوله سرمایه پکښې ختمېږي نو زکوة نسته او که د پور تر ادا کولو وروسته بیا هم دومره سرمایه ده ته پاته کېدل چې نصاب ته رسېږي نو بیا زکوة پر سته[۳].

## د مهر د پیسو زکوة:

که چیري لور د شرم او حیا په وجه دغه مهر خپل پلار ته ورکړی وي

---

[۱] و لو مات فاداها وارثه قوله جاز في الجوهرة اذا مات من علیه الزکوة او فطرة او کفارة او نذر لم توخذ من ترکته عندنا الا ان یتبرع ورثته وهم من اهل التبرع و لم یجبروا علیه وان اوصی تنفذ من الثلث (ردالمحتار: دوهم ټوک – ۳۵۹ مخ).

[۲] و سببه ای سبب افتراضها ملک نصاب حول نسبة للحول لحولانه علیه... والمستفاد و لو بهبة او ارث وسط الحول یضم الی نصاب من جنسه فیزکیه بحول الاصل ... ادخل فیه المفاد بشراء او میراث او هبة و ما کان حاصلا من الاصل کالاولاد والربح (ردالمحتار: دوهم ټوک – ۲۸۸ مخ). (و فتاوی حقانیه: دریم ټوک – ۴۹۸ مخ).

[۳] و من کان علیه دین یحیط بماله فلا زکوة علیه وان کان ماله اکثر من دینه زکی الفاضل اذا بلغ نصابا (هدایه: دوهم ټوک – شپږم مخ).

نو دغه بخښنه اعتبار نه لري ځکه چې په بخښنه کې د واهب رضا ضروري ده نو په دغه صورت کې پر لور زکوة واجب دئ او د پلار لپاره د دغه پیسو استعمال جائز نه دئ او که چیري لور دغه مهر په خوښه سره پلار ته ورکړی وي نو د پلار لپاره ئې استعمال جائز دئ او د دغه پیسو زکوة هم پر پلار واجب دئ[1].

## په امانت کې زکوة:

که یو چا یو شی د امانت په توګه د بل چا سره ایښی وي نو د مالک ملکیت نه زائلېږي تر څو چې ئې و هغه بل نفر ته ملکیت او تسلیمي نه وي ورکړې نو پر مالک باندي د کال په تېرېدو سره زکوة واجب دئ[2].

## پر پراویډنټ فنډ باندي زکوة:

ځیني دولتي او غیر دولتي اداري د کارکوونکو تنخواوي کموي او تر هغه وخته پوري ئې نه ورکوي تر څو چې تقاعد ئې نه وي کړی د تقاعد سره ئې سم ورکوي و دغه پیسو ته پراویډنټ فنډ وایي.

اوس نو که دغه ډول اداري تنخواوي په زوره کموي او باوجود پر دې چې د کارګر ملکیت ختم نه دئ خو په ملکیت او تصرف کې ئې نه وي نو په شریعت کې زکوة نسته ځکه چې دغه پیسې په دین ضعیف کې

---

[1] و من کان له نصاب فاستفاد في اثناء الحول مالا من جنسه ضمه الی ماله و زکاه سواء کان المستفاد من نمائه اولا وباي وجه استفاد ضمه سواء کان بمیراث او هبة او غیر ذلک ولو کان من غیر جنسه (هندیه: اول ټوک – ۱۷۵ مخ).

[2] قوله فلوله بینة تجب لما مضی، والظاهر علی القول بالوجوب ان حکمه حکم الدین القوي (ردالمحتار: دوهم ټوک – ۲٦٦ مخ).

شاملي دي چي د وصول او کال تر تېرېدو وروسته زکوة واجب دئ[۱].

**پر مشترکه (لمیټډ) کمپنیانو زکوة:**

که یو څو کسان مشترک کاروبار کوي او مشترکه مالیت ئې تر نصاب زیات وو خو تر تقسیم وروسته د هر یوه حصه تر نصاب پوري نه رسېدل نو پر دغه مشترک مال باندي زکوة نسته او که چیري هر شریک ته دومره حصه رسېدله چي نصاب ته رسېږي بیا نو زکوة واجب دئ ځکه چي دا خبره ضروري ده لکه څنګه چي مال نصاب ته رسېدل ضروري دي هم داسي زکوة ورکوونکی به هم صاحب نصاب وي[۲].

**پر فکس ډیپازټ باندي زکوة:**

فکس ډیپازیټ په بینک کي هغه کاتې ته ویل کېږي چي پیسې د ټاکلي وخت لپاره ایښودل کېږي او ایښودونکی کس تر ټاکلي وخت ترمخه د بینک څخه پیسې نه سي راایستلای دغه وخت د پنځلسو ورځو څخه شروع بیا تر ډېر وخته پوري دئ، د احنافو په نظر د زکوة د وجوب لپاره د ملکیت پوره والی ضروري دئ البته که یو سړی په خپل اختیار خپل مال و بل چا ته ورکړي او دغه دوهم سړی اقرار هم کوي مګر ورکوونکی پر خپل مال قبضه نه سوای کولای نو دغه مال په دین کي

[۱] ۱۰۷۱۷ عن عمرو بن میمون قال اخذ الولید بن عبدالملک مال رجل من اهل الرقة یقال له ابو عائشة عشرین الفافالقاها في بیت المال فلما ولي عمر بن عبدالعزیز اتاه ولده فرفعوا مظلمتهم الیه فکتب الی میمون ان ادفعوا الیهم اموالهم وخذوا زکوة عامهم هذا (مصنف ابن ابي شیبه: شپږم ټوک – ۵۶۹ مخ). و عند قبض مائتین مع حولان حول بعده ای بعد القبض من دین ضعیف و هو بدل غیر مال کمهر ودیة و بدل کتابة و خلع (درمختار: دوهم ټوک – ۳۰۶ مخ).

[۲] ولو کانت الفضة مشترکة بین اثنین فان کان یبلغ نصیب کل واحد منهما مقدار النصاب تجب الزکوة والا فلا ویعتبر في حال الشرکة مایعتبر في حال الانفراد وهذا عندنا (بدائع الصنائع: دوهم ټوک – ۱۰۱ مخ).

داخل دئ ځکه نو په دغه مال کي زکوة واجب دئ مګر ادا کول ئې هغه وخت ضروري دي چي پر دغه مال قبضه وسي، اوس په دغه کاته کي چي د فکس ډیپازیټ په نامه ده زکوة سته البته ادا کول ئې تر وصول وروسته لازم دي[۱].

**د بینک یا انشورنس پر ګټو زکوة:**

د بینک یا نورو سودي ادارو څخه چي کومي ګټي لاس ته راوړل کېږي هغه سود دئ او حرام دئ خیراتول ئې واجب دي ځکه نو پر دغه ګټو باندي زکوة نسته او که چیري سود د اصلي مال سره ګډ وي او ډېره حصه د حلال مال وي نو په دې صورت کي زکوة واجب دئ[۲].

**په پېشکي کرایه کي زکوة:**

د پېشکي کرایې په اخیستلو سره د دوکان یا مځکي مالک د کرایې مالک ګرځي دوکاندار د هغه څخه مطالبه نه سي کولای ځکه نو د دغه مال زکوة د دوکان یا مځکي پر مالک واجب دئ او هغه به ئې ادا کوي[۳].

**د ګروي په پیسو کي زکوة:**

په زکوة کي د پیسو د پوره ملکیت درلودل ضروري دي چي هغه سړی به د مال کُلي مالک وي دا چي په رهن کي د راهن (مالک) پوره

---

[۱] ولو کان الدین علي مقر ملئ او معسر تجب الزکوة لامکان الوصول الیه ابتداء ... ففي القوي تجب الزکوة اذا حال الحول و یتراخي الاداء الی ان یقبض اربعین درهما ففیها درهم (فتح القدیر: دوهم ټوک – ۱۷۶ مخ).

[۲] لوخلط السلطان المال المغصوب بماله ملکه فتجب الزکوة فیه و یورث عنه لان الخلط استهلاک اذا لم یکن تمییزه عند ابي حنیفة (درمختار: دوهم ټوک – ۲۹۰ مخ).

[۳] و ذکر الشیخ الامام ابوبکر محمد بن الفضل البخاري في الاجارة الطویلة التي تعارفها اهل بخاري ان الزکاة في الاجرة المعجلة تجب علی الاجر لانه ملکه قبل الفسخ (بدائع الصنائع: دوهم ټوک – ۸۴ مخ). کذا فی فتح القدیر: دوهم ټوک – ۱۷۴ مخ.

ملکيت نسته ولي چي هغه ګرو سوی شی د ده د لاسو څخه وتلی دئ او نه د مرتهن (ګرودار) پوره ملکيت دئ ولي چي دی هم ملک نه لري ځکه نو د ګروی په پيسو کي زکوة نه پر راهن او نه پر مرتهن واجب دئ البته که ګرو سوی شی د هر چا ملکيت سو نو بيا زکوة پر هغه واجب دئ[۱].

**د تارياکو په کاروبار کي زکوة:**

دغه مال په خپل ذات کي مال متقوم (قيمت دار مال) دئ، ځکه نو کاروبار ئې هم جائز دئ او د هغه څخه په حاصل سوي مال کي زکوة هم واجب دئ[۲].

**د مړي د ترکې (پاته سوي مال) څخه زکوة:**

که يو سړی مړ سي او زکوة باندي واجب وي او وصيت ئې نه وي کړی نو د ده د ترکې څخه زکوة نه اخيستل کېږي ځکه چي د زکوة د ادا کولو لپاره نيت کول شرط دي او تر مرګ وروسته انسان د نيت کولو قابليت نه لري او که چيري ئې وصيت کړی وي چي زما د مال څخه دي زکوة ادا سي نو بيا زکوة ادا کول صحيح دي[۳].

---

[۱] واطلق الملک فانصرف الی الکامل وهو المملوک رقبة ويدا ... و من موانع الوجوب الرهن اذا کان في يد المرتهن لعدم ملک اليد (البحرالرائق: ص۳۵۵،ج۲).

[۲] و صح بيع غير الخمر ممامر و مفاده صحة بيع الحشيشة والافيون (قوله و صح بيع الخمر) اي عنده خلافا لهما في البيع والضمان لکن الفتوی علی قوله في البيع و علی قولهما في الضمان (ردالمحتار: مخ ۴۶۵، شپږم ټوک).

[۳] و لو مات فاداهاوارثه جاز (قوله جاز) فی الجوهرة اذا مات من عليه زکوة او فطرة او کفارة او نذرلم تؤخذ من ترکته عندنا ... و ان اوصی تنفذ من الثلث (ردالمحتار: دوهم ټوک – ۳۵۹ مخ) اور بذات خود یه مال متقوم بهی ہے اس لئے فی الجملہ اس کي خريد و فروخت کی جائے تو جائز ہے اور اس سے حاصل شدہ مال پر زکوۃ واجب ہے (فتاوی حقانيه: دريم ټوک، ۵۱۰ مخ، و هکذا في کفاية المفتي :نهم ټوک، ۱۲۹ مخ).

**اسلامي دولت په زوره زکوة وصولولای سي:**

که څوک د زکوة ورکولو څخه منعه کوي او یا ئې اقرار کوي مګر نه ئې ادا کوي نو شرعاً د وخت حاکم ته اجازه سته چي د دغه سړي څخه په زوره زکوة وصول کړي او پر فقیرانو ئې وویشي[۱].

**په زمرود، جواهراتو او نورو قیمتي ډبرو کي زکوة:**

ټولي هغه قیمتي ډبري چي د تجارت په غرض د ځان سره نه وي ایښودل سوي یوازي د شغل یا مصروفیت په خاطر ئې ایښي وي زکوة پکښي واجب نه دئ او که دتجارت لپاره وي بیا زکوة پکښي سته[۲].

**د مطالعې په کتابو کي زکوة:**

شرعاً زکوة په هغه مال کي واجب دی چي تر حوائج اصلیه زیات وي او د تجارت په نیت ایښودل سوي وي، دا چي کتب خانه د مطالعې لپاره ده د تجارت لپاره نه ده ځکه نو په حوائج اصلیه کي داخله ده په مالیت کي یې زکوة نسته[۳].

**د زکوة د نیت ماسوا پر فقیرانو پیسې ویشل:**

د زکوة د ادا کولو په وخت کي یا د زکوة د مال د جلا کېدو پر وخت د زکوة نیت کول ضروري دي لهذا که څوک ډېري پیسې د زکوة د نیت بغیر فقیرانو ته ورکړي نو زکوة ئې نه ادا کېږي او دغه سړی که تېر کلونه پر

---

[۱] و من امتنع عن اداء زکاة ماله واخذها الامام کرها منه فوضعها في اهلها اجزاه لان للامام ولایة اخذ الصدقات فقام اخذه مقام دفع المالک (البحرالرائق: دوهم ټوک – ۳۶۹ مخ).

(۲) عن عکرمة رضي الله عنه قال: لیس في حجر اللؤلؤ و لا حجر الزمرد زکاة الا ان یکون للتجارة، فان کانت للتجارة ففیه الزکاة. (نصب الرایه، دوهم ټوک ۳۹۷مخ)

[۳] رجل له کتب العلم ما یساوي مائتي درهم ان کانت ممایحتاج الیها في الحفظ والدراسة والتصحیح لایکون نصابا وحل له اخذ الزکوة فقهاً کان او حدیثا او ادبا (خلاصة الفتاوی: اول ټوک – ۲۴۰ مخ).

دغه طریقه زکوة ورکړی وي نو دوهم وار دي ئې بیا ادا کړي[1].

**د مدارسو د سفیرانو زکوة اخیستل**:

سفیر چونکه د چنده ورکوونکي وکیل دئ نو د تملیک ترمخه د سفیر لپاره د زکوة د خیرات د نورو پیسو څخه خوراک، څښاک او خپله حصه مقررکول جائز نه دي[2].

**تر نصاب کم سرو زرو سره پر نغدو زکوة**:

که د چا سره سره زر تر نصاب کم وي او لږ نغدي پیسې لري نو که دواړه سره یو ځای کړي او قیمت ئې دوپنځوس نیمو تولو سپینو زرو ته رسیږي زکوة پکښې واجب دئ[3].

**په اختر کي زکوة د اختر په مبارکي کي ورکول**:

د زکوة د ورکولو په وخت کي د زکوة نیت ضروري دی نو که یو چا د اختر د مبارکۍ د ورکولو په وخت کي د زکوة نیت نه وي کړی زکوة ئې نه ادا کیږي او که یو چا د ورکولو پر وخت یا د مال د جلا کیدلو پر وخت د

---

[1] و شرط صحة ادائها نية مقارنة له اي للاداء و لو كانت المقارنة حكما ... و لا يخرج عن العهدة بالعزل بل بالاداء للفقراء (درمختار: دوهم ټوک – ۲٦۸ مخ).

(۲) العامل هو الذي يبعثه الامام لجباية الصدقات (العناية على هامش فتح القدير: مخ ۲٦۷، ټوک۲).

الجواب: زکوة سے کسی سفیر کو تنخواه جائز نهیں اور وه عاملین علیه میں داخل نهیں (فتاوی دارالعلوم دیوبند: اول ټوک – ۳٦۳ مخ).

[3] فا فادان التقويم انما يكون بالسكوك عملا بالعرف مقوما باحدهما ان استويا فلو احدهما اروج تعين التقويم به ولو بلغ باحدهما نصابا دون الاخر تعين مايبلغ به (درمختار: دوهم ټوک – ۲۹۸ مخ). اور تین توله سونا اور نقد پانچ روپے مل کرساڑھے باون توله چاندي کي قیمت کے برابر هو جاتے هیں اس لئے زکوة واجب هوجائے گی (فتاوی رحیمیه: اووم – اتم ټوکونه – ۱۵۵ مخ)

زکوة نیت کړی وي نو زکوة ئې ادا کېږي[۱].

**د خاوند په پور سره د ښځي څخه زکوة نه ساقطېږي:**

که ښځه زېورات ولري خو خاوند دومره پوروړی وي چي د کور والا ټوله زیورات پکښي ختمېږي نو پر ښځي باندي زکوة واجب دئ د خاوند د پور هیڅ اعتبار نسته[۲].

**په اسلحه کي زکوة:**

توپنچه، کلاشینکوف، ماشین او داسي نوري اسلحې که د ځان ساتني لپاره وي او د دې څخه ماسوا نور دومره مال نه وي چي زکوة واجب کړي نو په داسي اسلحه کي زکوة نسته البته که د تجارت لپاره اسلحه وه بیا زکوة پکښي واجب دئ[۳].

**زکوة اخیستونکي ته د زکوة نوم نه اخیستل:**

د زکوة د ادا کولو په وخت کي د زکوة نیت ضروري دئ فقیر ته دا ویل چي دغه د زکوة مال دئ ضروري نه دي بلکي د پور، بخښني او نور نومان هم اخیستلای سي[۴].

**مهاجرو ته په ورکول سوې مرسته کي زکوة:**

ځیني افغانان مختلفو هیوادو ته هجرت کوي هلته د دوی سره

---

[۱] دفع الزکوة الی صبیان اقاربه برسم عید او الی مبشرا لباکورة او مهدي الباکورة جاز قوله صبیان اقاربه اي العقلاء والا فلا یصح الا بالدفع الی ولي الصغیر (درمختار: دوهم ټوک – ۳۵٦ مخ). و مثله في البزازیه: څلورم ټوک – ۸٦ مخ.

[۲] الزکوة واجبة علی الحر العاقل البالغ المسلم اذا ملک نصاباً ملکا تاما (هدایه: دوهم ټوک – ۳ مخ).

[۳] فلیس في دور السکنی ... و سلاح الاستعمال زکوة (هندیه: اول ټوک – ۱۷۲ مخ).

[۴] و شرط صحة ادائها نیة مقارنة له اي اشار الی انه لااعتبار للتسمیة فلو سماها هبة او قرضا تجزیه في الاصح والی انه لو نوی الزکاة والتطوع وقع عنها عند الثاني لان نیة الفرض اقوی (درمختار مع رد المحتار: دوهم ټوک – ۲٦۸ مخ).

مرستي کېږي نو که دغه مرستي دوی ته تمليکاً ورکول کېږي او د شرعي نصاب سره برابري وي نو د کال په تېرېدو سره زکوة ورکول ضروري دی[۱].

**په فارمي چرګانو او پيداوار کي ئې زکوة :**

نن سبا ډېر داسي فارمونه سته چي هلته چرګان پالل کېږي خو دغه ماشيني پالل سوي چرګي د شپږو مياشتو څخه تر اتو مياشتو پوري هګۍ اچوي وروسته دغه چرګي د هګيو سره خرڅېږي نو چي کله هګۍ او چرګي ټولي خرڅي سي د ټولو سرمايه که نصاب ته رسېدل او کال باندي تېر سوی وي نو زکوة ئې بايد ادا سي[۲].

**د اوړو په ميلانو او تم ځايو (اسټينډ) کي زکوة :**

د سپينو او سرو زرو (دراهم او دنانير) څخه ماسوا هر شی چي د تجارت په نيت رانيول سوی وي زکوة پکښي واجب دئ، دا چي د اوړو ميلان يا د موټرانو تم ځايونه د ګټو لپاره په کرايه ورکول کېږي نو د دوی په ذات کي زکوة نسته مګر د دوی په ګټو کي زکوة واجب دئ کله چي نصاب ته ورسېږي او کال باندي تېر سي[۳].

**په مائع ګيس او د هغه په ډبو (سلنډر) کي زکوة :**

که چيري ګيس او ډبې د تجارت لپاره وې نو زکوة پکښي واجب دئ،

---

[۱] الزكاة واجبة على الحر العاقل البالغ المسلم اذا ملک نصابا ملکاً تاماً و حال عليه الحول (تاتارخانية: دوهم ټوک – ۱۶۴ مخ).

[۲] الزكاة واجبة على عروض التجارة كائنة ماكانت اذا بلغت قيمتها نصابا من الورق او الذهب (هدايه: دوهم ټوک – ۴۰ مخ).

[۳] (قوله في عروض تجارة...) قيد بكونها للتجارة لانها لو كانت للغلة فلا زكاة فيها لانها ليست للمبايعة (البحرالرائق: دوهم ټوک – ۳۹۸ مخ).

خو کله داسي هم وي چي يو څوک مثلاً لس ډبې د ګازو د شرکت څخه ډکي رانيسي د ګازو تجارت په کوي مګر کله چي ډبې خالي سي بيرته ئې د ګازو شرکت ته ور وړي نوري ډبې ډکي ځني اخلي خو في ډبه د ګازو مثلاً ۱۰۰ افغانۍ ورکوي نو په داسي صورت کي په دغه خالي ډبو کي زکوة واجب نه دئ ځکه چي د دغه ډبو يوازي تبادله کېږي او د تجارت مال نه دئ البته په ګازو کي زکوة واجب دئ[۱].

**په زکوة کي د خرڅولو قيمت اعتبار لري:**

دوکاندار چي په کوم نرخ سامان خرڅوي يا په بل عبارت په کومه ورځ چي کال پوره کېږي د هغې ورځي قيمت اعتبار لري او په کومه ورځ چي تر مخه دغه سامان رانيول سوی وي هغه قيمت اعتبار نه لري، مثلاً: يو نفر په کمپني کي ټوکر ګز په ۲۰ افغانۍ رانيسي خو په بازار کي يې په ۵۰ افغانۍ خرڅوي نو دغه د بازار نرخ اعتبار لري[۲].

**په زېوراتو کي د کومي ورځي نرخ اعتبار لري:**

په زيوراتو کي هم د هغې ورځي قيمت اعتبار لري په کومه ورځ چي

---

[۱] وكذلک آلات المحترفين اي سواء كانت مما لا تستهلک عينه في الانتفاع كالقدوم والمبرد او تستهلک ... قال وقوارير العطارين ولحم الخيل والحمير المشتراة ... ان كان من غرض المشتري بيعها بها ففيها الزكوة والا فلا (ردالمحتار: دوهم ټوک – ۲٦۵ مخ).

[۲] لان الواجب الاصلي عندهما هو ربع عشر العين وانما له ولاية النقل الى القيمة يوم الاداء فيعتبر قيمتها يوم الاداء والصحيح ان هذا مذهب جميع اصحابنا (بدائع: دوهم ټوک – ۱۱۱ مخ). يقوِّم التاجر العروض أو البضائع التجارية في آخر كل عام بحسب سعرها في وقت إخراج الزكاة، لا بحسب سعر شرائها، ويخرج الزكاة المطلوبة. (الفقه الاسلامي وادلته: دريم ټوک -مخ۱۸۷۱)

قيمت خريد معتبر نہيں بلكه جس دن سال پورا هو رها اس دن كي قيمت معتبر ہے (فتاوى عثماني: دوهم ټوک – ٦۸ مخ).

کال پوره کېږي او یا ئې دوکاندار خرڅوي[۱].

**په زېوراتو کي د غمیانو وزن شامل نه دئ:**

کومي مرغلري یا غمیان چي په سرو یا سپینو زرو کي کار سوي وي د هغوی وزن د زېوراتو په وزن کي نه شمېرل کېږي البته که دغه مرغلري یا غمیان د تجارت لپاره وه نو بیا د هغو په مالیت کي زکوة واجب دئ[۲].

**د سرای لپاره چي مځکه رانیول سوې وي:**

هغه ټوټه مځکه چي د سرای جوړولو لپاره رانیول سوې وي زکوة پکښې واجب نه دئ البته که یې خرڅه کړه او قیمت یې نصاب ته ورسېدی او کال باندي تېر سو نو زکوة واجب دئ[۳].

**په خالص حرام مال کي زکوة:**

که د یو چا سره یوازي حرام مال وي نو زکوة پکښې واجب نه دئ ځکه چي که ئې مالک معلوم وي نو هغه ته ورکول واجب دي او که ئې مالک معلوم نه وي خبیث مال خیراتول واجب دي[۴].

**د مختلفو هیوادو پر سکو باندي زکوة:**

سکه یا نوټ که افغانی وي او که د بل هیواد وي په هغه کي نصاب د دوپنځوس نیمو تولو سپینو زرو او یا شل مثقالو سرو زرو قیمت دئ،

---

[۱] والمعتبر وزنها اداء وجوبا (قوله ووجوبا) اي من حیث الوجوب (الدرالمختار مع ردالمحتار: دوهم ټوک – ۲۹۷ مخ).

[۲] و اما الیواقیت واللآلي والجواهر فلا زکوة فیها وان کانت حلیا الا ان تکون للتجارة (هندیه: اول ټوک – ۱۸۰ مخ).

[۳] و لیس في دور السکنی... زکاة لانها مشغولة بالحاجة الاصلیة ولیست بنامیة ایضا (هدایه: دوهم ټوک – ۸ مخ).

[۴] (قوله کمالو کان الکل خبیثا) في القنیة لو کان الخبیث نصابا لایلزمه الزکاة لان الکل واجب التصدق علیه فلا یفید ایجاب التصدق ببعضه (ردالمحتار: دوهم ټوک – ۲۹۱ مخ).

نو د دغو سکو قیمت چي کله نصاب ته ورسېږي زکات پکښي واجب دی[۱].

**د زکوة اندازې د نبي کریم ﷺ څخه ثابتي دي:**

د زکوة اندازې (مقادیر) منصوصي دي او په صحیح حدیثو ثابتي دي[۲].

**د خیرات پیسې په زکوة کي نه شمېرل کېږي:**

کومي پیسې چي په خیرات کي ورکول سوي وي په هغه باندي زکوة نه ادا کېږي دوهم وار ورکول ضروري دي[۳].

**د نغدو پر ځای نور اجناس ورکول:**

په زکوة کي د غریبانو حالت ته کتل کېږي چي هر شي د هغو لپاره مناسب وي هغه ورکول ډېر ښه دي مګر که د نغدو پیسو پر ځای بل شی یا د هغه قیمت ورکړي نو هم زکوة ادا کېږي[۴].

**د چښلو اوبه په زکوة کي ورکول:**

که په یو سیمه کي عموماً د اوبو خرڅولو رواج وي او داسي تږي او مسافر سړی چي د زکوة مستحق وي پیدا سي نو په زکوة کي اوبه

---

[۱] او في عرض تجارة قيمة نصاب ... من ذهب او ورق .. مقوما باحدهما .. ولو بلغ باحدهما نصابا و خمسا و بالاخر اقل قومه بالانفع للفقير (درمختار: دوهم ټوک – ۲۹۸ مخ).

[۲] عن علي ﷺ قال: قال رسول الله ﷺ قد عفوت عن صدقة الخيل والرقيق فهاتوا صدقة الرقة من كل اربعين درهما درهم وليس لي في تسعين ومائة شئ فاذا بلغت مائتين ففيهاخمسة دراهم (جامع الترمذي: اول ټوک – ۲۵۱ مخ). و مثله فی البخاري: اول ټوک – ۱۹۴ مخ.

[۳] فاذا نوى ان يؤدي الزكوة ولم يعزل شيئا فجعل يتصدق شيئا فشيئا الى اخر السنة ولم تحضره النية لم يجز عن الزكوة (هنديه: اول ټوک – ۱۷۰ مخ.

[۴] اما اذا ادى من خلاف جنسه فالقيمة معتبرة اتفاقا (ردالمحتار: دوهم ټوک – ۲۸۶ مخ).

ورکول کېدلای سي[۱].

**د زکوة پیسې په قسطو ادا کول**:

یو غریب سړی یا طالب العلم ته میاشتانه په قسطو باندي زکوة ورکول که څه هم جائز دي او زکوة په ادا کېږي مګر بیا هم ښه خبره دا ده چي زکوة یو ځای ورکول سي[۲].

**د پور د قسطو د شروع ترمخه کلونو زکوة**:

که یو څوک موټر مثلاً د میاشتي په ۱۰۰۰۰ لس زره افغانۍ په کښتو خرڅ کړي خو کښتونه درې کاله وروسته شروع کېږي نو په دې صورت کي به دغه سړی د دغه درو کلونو چي کښت نه وي شروع سوی هم زکوة ورکوي او چي کښت شروع سي هم به زکوة ورکوي ولي چي پر نغدو پیسو زکوة واجب دئ همداسي پر دین قوي باندي هم زکوة واجب دئ[۳].

**پر کوم مال باندي زکوة واجب نه دئ**:

په هر هغه مال کي چي په حوائجو اصلیه کي داخل وي که هر څومره قیمتي وي زکوة واجب نه دئ، لکه د کور سامان، موټر، سرای و غیره

---

[۱] و اماالذي یرجع الی المؤدي فمنها ان یکون مالا متقوما علی الاطلاق سواء کان منصوصا علیه او لا من جنس المال الذي وجبت فیه الزکوة او من غیر جنسه والاصل ان کل مال یجوز التصدق به تطوعا یجوز اداء الزکوة منه ومالا فلا (بدائع: دوهم ټوک – ۱۴۶ مخ).

[۲] ثم قیل هي واجبة علی الفور لانه مقتضي مطلق الامر وقیل علی التراخي لان جمیع العمر وقت الاداء لهذا لاتضمن بهلاک النصاب بعد التفریط (هدایه: دوهم ټوک – ۴ مخ).

[۳] واذا عجل زکاة سنین یجوز عند علمائنا الثلاثة ... و في شرح الطحاوي و انما یجوز التعجیل بشرائط ثلاثة احدها: ان یکون الحول منعقدا وقت التعجیل والثاني ان یکون النصاب کاملا في التي عجل عنه في آخر الحول والثالث ان لایفوت اصله فیما بین ذلک (تاتارخانیه: دوهم ټوک – ۱۹۱ مخ).

...[۱].

**په تجارتي مال کي د اندازې څخه زکوة ورکول:**

د تجارت پر ټوله سامان چي کله کال تېر سي نو قيمت دي ئې معلوم سي زکوة دي ئې ورکول سي ښه خبره دا ده چي ټوله شيان حساب کړل سي قيمت ئې معلوم سي مګر که د شمېرلو ماسوا زکوة ادا کول مقصود وي نو اندازه دي زياته وټاکل سي تر څو زکوة د تجارت تر مال کم نه وي[۲].

**پوروړی که د پور څخه انکار وکړي:**

په شريعت مقدسه کي په هر هغه پور کي زکوة واجب دئ چي دين قوي يا متوسط وي يعني پور ورکوونکی يا خوشاهدان ولري يا تحريري ثبوت ولري او يا خو پوروړی د پور اقرار کوي مګر دائن (پور ورکوونکی) به د پور پر وصولي قدرت لري نو زکوة واجب دئ او که داسي نه وه لکه ذکر چي سول نو بيا دغه پور د مال ضمار (هغه مال دئ چي د وصول امکان او اميد ئې نه وي) په حکم کي دئ کوم چي زکوة پکښي واجب نه دئ[۳].

**صاحب نصاب که زکوة ادا نه کړي او مصرف ئې کړي:**

کله چي پر نصاب کال تېر سي نو زکوة واجب دئ مګر که يو سړی تر

---

[۱] وليس في دورالسكني و ثياب البدن و اثاث المنازل و دواب الركوب و عبيد الخدمة و سلاح الاستعمال زكوة لانها مشغولة بحاجته الاصلية وليست بناميات (درمختار: دوهم ټوک – ۲۶۲ مخ).

[۲] الزكوة واجبة في عروض التجارة كائنة ما كانت اذا بلغت قيمتها نصاباً من الورق والذهب (هنديه: اول ټوک – ۱۷۹ مخ).

[۳] و لا في دين جحده المديون سنين ولابينة له عليه ثم توافرت له بينة بان اقر بعدها عند قوم (فقه اسلامي: دريم ټوک – ۱۷۹۵ مخ).

اوسه زکوة ادا کړی نه وو تهوله مال ئې په يو ضرورت کي مصرف کړی بيا هم د ده پر ذمه زکوة پاته دئ، البته که مال هلاک يا تباه سو خو زکوةورکوونکی په هلاکت کي نه وو ملامت نو بيا زکوة ساقطيږي[1].

**د پور پر وصول باندي قدرت نه وي:**

که يو سړی د بل طاقتور يا بدمعاش سړي څخه خپل پور وصولولای نه سي نو راجح قول دا دئ چي پر دغه سړي زکوة واجب نه دئ البته د وصولۍ په صورت کي چي څومره وصول کړي د کال د تېرېدو وروسته دي زکوة ورکړي[2].

**د کال تر تېرېدلو وروسته د زکوة په اداء کي شک سو:**

که يو چا ته شک پېښ سي چي زکوة مي ادا کړی که مي نه دئ ادا کړی نو دوهم وار دي ئې بيا ادا کړي ځکه چي د زکوة وخت مقرر نه دئ[3].

**ټيکس (محصول) د زکوة متبادل نه سي کېدلای:**

په اسلامي شريعت کي زکوة يو عبادت دئ کوم چي د هغه لپاره شرعي حدود، اندازې او نور څه ټاکل سوي دي مګر حکومتي محصول چي نه د مال مقدار پکښې معلوم دئ او نه د عبادت په نيت کېږي او نه

---

[1] زکوة بر ذمه اوست در خزانة الروايات از عتابيه منقول است اذا هلک النصاب بعد الحول تسقط عنه الزکوة و ان استهلکه ضمن الزکوة في ذمته و الاستهلاک اخراج النصاب عن ملکه (مجموعة الفتاوی علی هامش خلاصة الفتاوی: اول-دوهم ټوکونه-۲۳۷ مخ).

[2] الجواب: اگر کوئی شخص کمزور کي وجه سے بدمعاش قسم کے شخص سے اپنا قرضه وصول نهيں کرسکتا هو تو راجح يه هے که اس شخص پر قرضه کي زکوة واجب نهيں... (فتاوی حقانيه: دريم ټوک-۵۳۲ مخ).

[3] و لو شک رجل في الزکوة فلم يدر ازکی او لم يزک فانه يعيدها (هنديه: اول ټوک-۱۸۰ مخ).

اسلام، بلوغ او عقل پکښې شرط دي بلکې دا د هغه فايدې حکومت عوض اخلي کوم چې عوامو خلکو ته د دولت له خوا ورکول کېږي او نه د ټيکس هغه مصارف دي کوم چې د زکوة دي ځکه نو د دغه شرائطو د فقدان (نېستوالي) په وجه موجوده ټيکس په زکوة کې نه شمېرل کېږي بلکې مستقل زکوة به ادا کوي[1].

**پر جامو و غيره چې د سرو يا سپينو زرو کار وي:**

که د خامک لپاره خالص د سرو يا سپينو زرو تار استعمال سي نو د کال تر تېرېدلو وروسته دي حساب وکړي زکوة دي ورکړي او که چيري تارونه خالص د سپينو يا سرو زرو نه وي بلکې دغه تارونه يوازې د سپينو يا سرو زرو په اوبو باندې رنګ سوي وي نو په خالي رنګ سره زکوة واجب نه دئ[2].

**د انسان د بدن پر ځينو اعضاوو د زرو پوښ:**

ځيني انسانان د خپل بدن ځيني اندامو ته د سپينو يا سرو زرو پوښ ورکوي او دا رواج د ځينو مصلحتو يا حالاتو پر بناء را شروع سوی دئ اوس نو که دغه پوښ د انسان هغو اندامو ته ورکول سوی وي چې د هغه ليري کول بيا ډېر تکليف لري او د انسان د اندام جزء وګرځي نو په دې صورت کې د دغو سپينو يا سرو زرو پر پوښ باندې زکوة نسته، او که چيري د انسان د بدن هغه اندامو ته ورکول سوی وي چې ليري کول ئې

---

[1] للزكاة شروط وجوب و شروط صحة فتجب بالاتفاق على الحر المسلم البالغ العاقل اذا ملك نصاباً ملكاً تاماً و حال عليه الحول و تصح بالنية المقارنة للاداء اتفاقاً (فقه اسلامي: دريم ټوک – ۱۷۹۶ مخ).

[2] تجب الزكوة في الذهب والفضة مضروباً او تبرا او حليا مصوغاً او حلية سيف او منطقة او لجام او سرج او الكواكب في المصاحف والاواني وغيرها اذا كانت تخلص عن الاذابة سواء كان يمسكها للتجارة او للنفقة او للتجمل او لم ينو شيئا (البحر الرائق: دوهم ټوک – ۳۹۴ مخ).

آسانه وي بيا نو زکوة پکښې واجب دئ ځکه چي په هغو کي حکماً نمو سته[1].

**که د زکوة مال غلا سي:**

که يو چا د زکوة مال جلا کړی وو خو غريبانو ته ئې لا نه وو ورکړی چي غلا سو نو د زکوة دوهم وار ادا کول ضروري دي ځکه چي د تمليک شرط نه دئ پر ځای سوی[2].

**د اجارې پر نغدو پيسو باندي زکوة:**

که يو څوک في جريب د کال په ۱۰۰۰ افغانۍ په اجاره ورکړي نو دغه د اجارې پيسې د نوري سرمايې تابع ګرځي د کال په تېرېدو سره زکوة پکښې واجب دئ او که د دغه مځکي څخه څوک پاليز يا کښت حاصل کړي نو عشر باندي واجب دئ[3].

**د زکوة فائدې:**

**اوله فائده:** په اوسني وخت کي هر څوک د خپلو حقونو نارې وهي او د اميرانو او غريبانو يو قسم جنګ روان دئ نو که هر طبقه هغه حقونه ادا کړي چي د دوی پر ذمه دي د دنيا څخه به غريبي او فقر ختم سي او خلګ به آرام ژوند وکړي.

**دوهمه فائده:** په ژوند کي د مال او دولت مثال داسي دئ لکه د انسان په بدن کي وينه نو که د بدن وينه نه وي انسان ژوند نه سي کولای

---

[1] فتاوی حقانيه: دريم ټوک – ۵۳۴ مخ).

[2] رجل عزل زکوة ماله ووضعها في ناحية بيته فسرقها سارق لايقطع يده للشبهة وعليه ان يزکيها (خلاصة الفتاوی: اول ټوک – ۲۳۸ مخ).

[3] والرابع ان يدفعها مؤاجرة فان عشرها في قول ابي حنيفة على رب الارض من اجرتها في قول الاخرين العشر علي المستاجر لان الزرع انما يخرج له دون رب الارض (النتف في الفتاوی: ۱۲۰ مخ).

او د مرګ سره مخامخ کېږي همداسي که چیري په ژوند کي د مال او دولت تقسیم منصفانه او عادلانه نه وي نو د ټولي معاشرې ژوند په خطر کي لوېږي ځکه نو الله تعالی د صحیح ژوند کولو لپاره د زکوة او خیراتو نظام جوړ کړی دئ.

**دریمه فائده**: دا خبره هر چا ته معلومه ده چي که وینه تر ضرورت زیاته سي نو په هغه کي حتماً خرابي او بدوالی راځي همداسي که چیري تر ضرورت زیات مال او دولت د یو چا سره جمع سي کله به یوه ګناه په کوي او کله به بله ګناه په کوي الله تعالی د دې لپاره چي د هر انسان سره د ضرورت په اندازه مال او دولت پاته سي د زکوة نظام جوړ کړی دئ.

**څلورمه فائده**: د انسانانو سره همدردي او د مسکینانو غربت ختمول د زکوة په ورکولو سره راځي.

**پنځمه فائده**: مال که د یوه طرفه په انساني ژوند کي ډېر ښه حیثیت لري د بل طرفه د انسان اخلاق هم خرابوي نو کله کله د یو انسان سره مال نه وي هغه و غلط حرکت کولو ته آماده کېږي غلا کوي، خمار کوي یا بله ګناه ځني کېږي نو د زکوة په ورکولو سره د ټولو غلطو حرکتونو مخنیوی کېږي.

**شپږمه فائده**: کله کله داسي هم پېښېږي چي هغه کسان چي ډېر مال لري په مختلفو بدو کارونو کي اخته وي او غیر انساني حرکتونه کوي نو الله تعالی د زکوة په ورکولو سره انسانان د خرابو او بداعمالو څخه هم راګرځوي.

**اوومه فائده**: په زکوة او خیرات سره الله تعالی راضي کېږي، آفتونه

او مصیبتونه په دفع کېږي او د انسان ځان او مال د آفت څخه ساتل کېږي[1].

**د زکوة د وجوب لپاره د کال د تېرېدلو حکمت:**

ابن القیم رحمه الله علیه فرمايي چي: الله تعالی هر کال زکوة ځکه فرض کړی چي په یوه کال کي مختلف فصلونه کېږي او مېوې پیدا کېږي او د یوه کال وخت پر نصاب مبنی دئ ځکه چي که زکوة په هره هفته یا میاشت کي واجب سي نو د مالدارانو لپاره به تکلیف وي او که په ټوله عمر کي یو وار فرض سي نو د مسکینانو لپاره به تکلیف وي[2].

---

[1] زکوة کے مسائل کا انسائیکلوپیڈیا: ص ۲۲۵.

[2] ثم انه اوجبها مرة کل عام ... اذ وجوبها کل شهرا و کل جمعة یضربارباب الاموال و وجوبها فی العمر مرة مما یضر بالمساکین (زادالمعاد: اول ټوک – ۲۱۷ مخ).

## دوهم باب

## د زکوة ادا کول

### وکیل که بل مستحق ته زکوة ورکړي:

که خالد د خپل زکوة وکیل نذیر وټاکي او ورته ووايي چي احمد ته دغه زکوة ورکړه خو نذیر دغه زکوة بل نفر محمود ته چي د زکوة مستحق وو ورکړ، اوس نو یو قول دا دئ چي زکوة ادا کېږي او بل قول دا دئ چي زکوة نه ادا کېږي او وکیل ضامن دئ نو احتیاط په دې کي دئ چي بل چا ته زکوة ور نه کړي بلکي هغه چا ته ئې ورکړي کوم چي مؤکل ټاکلی دئ[۱].

### بې له اجازې زکوة ادا کول:

که یو څوک د بل چا زکوة بې له اجازې خپله ادا کړي نو د دوهم نفر زکوة نه صحیح کېږي که څه هم وروسته اجازه ورکړي او څومره پیسې چي ئې د ځانه ورکړي دي له دوهم نفره ئې نه سي اخیستلای ځکه چي هغه په دې کي مسئول نه دئ[۲].

### د اخراجاتو په پیسو کي زکوة:

د کال یا میاشتي د اخراجاتو په پیسو کي زکوة نسته ځکه چي دغه پیسې په ضرورت اصلیه کي داخلي دي او که تر اخراجاتو زیاتي پیسې

---

[۱] وهنا الوکیل انما یستفید التصرف من المؤکل و قد امره بالدفع الی فلان فلا یملک الدفع الی غیره کما لو اوصی لزید بکذا لیس للوصي الدفع الی غیره (ردالمحتار: دوهم ټوک – ۲۶۹ مخ).

[۲] ولو تصدق عن غیره بغیر امره فان تصدق بمال نفسه جازت الصدقة عن نفسه ولاتجوز عن غیره وان اجازه ورضی به (بدائع: دوهم ټوک – ۱۴۵ مخ).

نصاب ته ورسېدلې نو بيا هر کال زکوة پکښې واجب دئ[1].

## د زکوة د ادا کولو شرطونه:

* د زکوة د پيسو يا مال مستحق نفر ته د ورکولو په وخت کې نيت سته يعني په زړه کې به دا نيت او اراده وي چې زکوة ادا کوم[2].
* که يو چا و فقير ته د پيسو ورکولو په وخت کې نه نيت کړی وو او نه ئې د پيسو د جلاکېدو په وخت کې د زکوة نيت کړی وو خو تر ورکولو وروسته ئې نيت وکړ نو زکوة ئې نه صحيح کېږي[3]، او که دغه پيسې د فقير سره موجودې وې خرڅې کړی ئې نه وې او په زړه کې ئې د زکوة نيت وکړی نو زکوة ئې صحيح سو دوهم وار راگرځول نسته، او که چيرې دغه فقير پيسې مصرف کړې وې نو د زکوة نيت ئې نه صحيح کېږي دوهم وار به زکوة ورکوي[4].
* او که چيرې يو چا د زکوة په نيت پيسې جلا کړې وکيل ته ئې ورکړې نو د وکيل لپاره د زکوة د تقسيمولو په وخت کې نيت ته ضرورت نسته که وکيل نيت وکړي او که ئې نه وکړي زکوة ادا کېږي[5].

---

[1] وفارغ عن حاجته الاصلية (درمختار: دوهم ټوک – ۲۶۲ مخ). و سببه... ملک نصاب حولی ... تام (درمختار: دوهم ټوک – ۲۵۸ مخ).

[2] و اما شرائط ادائها فنية مقارنة للاداء او لعزل ما وجب (هنديه: اول ټوک – ۱۷۰ مخ).

[3] و اما شرائط ادائها فنية مقارنة للاداء او لعزل ما وجب (هنديه: اول ټوک – ۱۷۰ مخ).

[4] و اذا دفع الى الفقير بلانية ثم نواه عن الزكاة فان كان المال قائما في يد الفقير اجزاه والافلا (هنديه: اول ټوک – ۱۷۱ مخ).

[5] والمعتبر في الدفع نية الامر حتى لو دفع خمسة الى رجل وامره ان يدفعها الى الفقير عن زكاة ماله فدفع ولم تحضره النية عند الدفع جاز لان النية انما تعتبر من المؤدي والمؤدي هو الامر في الحقيقة (بدائع: دوهم ټوک – ۱۴۵ مخ).

- ✶ د زکوة پیسي یا مال چي کوم مستحق ته ورکول کېږي هغه باید بې له عوضه د هغه پیسو یا مال مالک جوړ سي او د هغه په قبضه کي ورکول ضروري دي[۱].
- ✶ که چیري هغه مستحق بې له عوضه د زکوة مالک نه سي نو زکوة نه ادا کېږي مثلاً په تنخواه کي زکوة ورکړي نو په داسي صورت کي زکات نه ادا کېږي[۲].
- ✶ که چیري فقیران کور ته راوغواړي او ډوډۍ په وخوري نو زکوة نه ادا کېږي البته که فقیرانو ته ډوډۍ په اختیار کي ورکړي چي هغوی هر څه په کوي او د زکوة نیت وکړي نو زکوة ادا کېږي[۳].
- ✶ نصاب به تر اصلي ضروریاتو زیات وي لکه د اغوستلو جامې، د اوسېدلو کور، موټر او داسي نور، او که نصاب تر اصلي ضروریاتو زیات نه وي نو زکوة واجب نه دئ[۴].
- ✶ مال به په خپله قبضه یا د وکیل په قبضه کي وي[۵].
- ✶ په دغه مال کي به بل واجب نه وي لکه عشر یا خراج[۶].

## استعمال سوی شی په زکات کي ورکول:

کمزوری شی په زکوة کي ورکول د اخلاص خلاف کار دئ مګر بیا

---

[۱] و شرعا تملیک جزء مال ... لان الشرط فیها التمکین (درمختار : دوهم ټوک – ۲۵۷ مخ).

[۲] دفع الزکاة الي صبیان ... اذا نص علی التعویض یصیرعقد معاوضة (ردالمحتار : دوهم ټوک – ۳۵۶ مخ).

[۳] فلو اطعم یتیما ناویا الزکوة لایجزیه الا اذا دفع الیه المطعوم (درمختار : دوهم ټوک – ۲۵۷ مخ).

[۴] کالنفقة و دورالسکنی وآلات الحرب والثیاب المحتاج الیها (ردالمحتار: دوهم ټوک – ۲۶۲ مخ).

[۵] و منها الملک التام وهو ما اجتمع فیه الملک والید (هندیه : اول ټوک – ۱۷۲ مخ).

[۶] فارغ عن دین له مطالب من جهة العباد سواء کان لله کزکاة وخراج او للعبد (درمختار :دوهم ټوک – ۲۶۰ مخ).

هم د دغه شي قيمت چي په بازار کي څومره وي د هغه په حساب زکات ادا کېږي[۱].

**په الماسو کي زکوة:**

په الماسو او نورو قيمتي ډبرو کي زکوة واجب نه دئ[۲].

**اموال يا مالونه پر دوه قسمه دي:**

**اول قسم -اموال ظاهره:** - هغه مالونه دي که ئې خلګ پټول وغواړي پټولای ئې نه سي لکه حيوانان، د تجارت مال په کارخانو او ميلانو کي تيار سوی مال او داسي نور.

**دوهم قسم :اموال باطنه:** - هغه مالونه دي که خلګ ئې پټول وغواړي پټولای ئې سي لکه نغدي پيسې، سره زر، په بينک کي جمع سوي پيسې او داسي نور[۳].

پر صاحب نصاب سړي باندي د اموال ظاهره او اموال باطنه دواړو زکوة ادا کول فرض دي او حکومت يوازي د اموال ظاهره زکوة وصولولای سي او د اموال باطنه زکوة د خپل صوابديد مطابق ادا کولای سي[۴].

**که پلار او زوی په ګډه پيسې وګټلې نو زکوة .....:**

که پلار او زوی په ګډه پيسې ګټلي وي او پيسې د پلار په قبضه کي وي او تصرف پکښي کوي او پيسې هم د نصاب برابري وي نو د کال تر

---

[۱] آپ کے مسائل اور ان کا حل: دريم ټوک – ۳۸۲ مخ).

[۲] وكذا لايجب الزكوة في ... والبلخش والزمرد ونحوها (هنديه: اول ټوک – ۱۷۲ مخ).

[۳] فان مال الزكاة نوعان: ظاهر و هو المواشي و ما يمر به التاجر على العاشر وباطن و هو الذهب والفضة واموال التجارة في مواضعها (ردالمحتار: دوهم ټوک – ۳۱۰ مخ).

[۴] اما الظاهر فللامام ونوابه... فوض الاداء الى اربابها (بدائع: دوهم ټوک – ۱۳۶ مخ).

تېرېدو وروسته پر پلار باندې زکوة ادا کول لازم دي پر زوی زکوة ادا کول لازم نه دي ځکه چې د پیسو مالک پلار دئ[۱].

**د زکوة په نه ادا کولو سره باران بندېږي**:

نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: د پنځو شيانو په بدله کې پنځه عذابونه دي، صحابه کرامو پوښتنه وکړه: اې د الله رسوله! د پنځو شيانو په بدله کې پنځه عذابونه کوم دي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل:

**اول**: کوم قوم چې وعده ماتوي او وعده **خلاف** ورزي کوي الله ﷻ د دوی د ښمنان پر دوی باندې مسلط کوي.

**دوهم**: کوم قوم چې د الله ﷻ د نازل سوي فيصلې **خلاف** حکم کوي په هغوی کې فقيري او لوږه زياتېږي.

**دريم**: کوم قوم چې په بدکارۍ او خرابو کارونو (زنا، لواطت ...) اخته سي نو په هغوی کې مرګونه زياتېږي.

**څلورم**: کوم خلک چې په تول او ترازو کې کمی کوي هلته خشک سالي وي او هغوی په قحط سالي کې ګرفتار کېږي.

**پنځم**: او کوم خلک چې زکوة (مستحقو خلکو ته) نه ورکوي د هغه ځای **څخه** باران بندېږي[۲].

**د امين لپاره د زکوة پيسې استعمالول**:

که يو چا د بل چا سره د زکوة پيسې کښېښودلې نو هغه سړی ئې په

---

[۱] اب و ابن يكتسبان في صنعة واحدة ولم يكن لهما مال فالكسب كله للاب اذا كان الابن في عيال الاب لكونه معينا الا ترى لو غرس شجرة تكون للاب (هنديه: دوهم ټوک – ۲۲۹ مخ).

[۲] ۳۹۴۵ خمس بخمس ما نقض قوم العهد ... ولامنعوا الزكاة الا حبس عنهم القطر (فيض القدير: دريم ټوک – ۶۰۲ مخ).

خپلو ضروریاتو کي نه سي استعمالولای او که ئې مصرف کړي نو د مصرف سوو پیسو په اندازه ضمان باندي لازم دئ[۱].

**د تمباکو زکوة ادا کول:**

که یو چا په عشري مځکه کي تمباکو شنه کړل نو عشر پکښي لازم دئ[۲].

**تر ټولو وړاندي دوږخ ته داخلېدونکي کسان:**

نبي کریم ﷺ وفرمایل: تر ټولو وړاندي اول درې کسان جهنم ته داخلېږي:

**اول:** په زوره باندي اقتدار حاصلوونکی.

**دوهم:** هغه مالداره چي د خپل مال څخه د الله تعالی حق یعني زکوة نه ادا کوي.

**دریم:** فخر کوونکی فقیر[۳].

**که مدفون (ښخ کړل سوی) شی پیداسو نو...:**

که یو څوک په دارالاسلام کي په یو داسي ځای کي ښخ سوی شی پیدا کړي چي هغه ځای د چا ملکیت نه وي لکه صحرا ... که پر دغو ښخ سوو شیانو باندي د اسلامي سلطنت علامه موجوده وي لکه کلمه، الله، رسول، یا بل اسلامي نوم نو دغه شیان د لقطي په حکم کي دي که د یو کال تر اعلان کولو وروسته ئې مالک پیدا سو مالک ته به ئې ورکړي او

---

[۱] اذا کان عند رجل ودیعة دراهم او دنانیر او شیئا من المکیل او الموزون وانفق شیئا منها في حاجته حتی صار ضامنا لما انفق (هندیه: څلورم ټوک – ۳۴۸ مخ).

[۲] و یجب العشر عند ابي حنیفة رحمة الله علیه ... والدخن (هندیه: اول ټوک – ۱۸۶ مخ).

[۳] قال رسول الله ﷺ: و اما اول ثلاثة یدخلون النار فامیر مسلط و ذوثروة من مال لایؤدی حق الله فی ماله و فقیر فخور (الزواجر عن اقتراف الکبائر: اول ټوک ۳۲۴ - مخ).

که نه سو پیدا خیرات به ئې کړي او که خپله د زکوة مستحق وي هم ئې استعمالولای سي.

او که پر ښخ سوو شیانو باندي د جاهلیت د زمانې علامې وي لکه د بت نقشه او داسي نور نو په دې صورت کي به پنځمه حصه زکوة ورکړي او پاته څلور حصې د دغه سړي دي کوم چي خزانه ئې پیدا کړې ده[1].

**پور پر درې قسمه دئ:**

**اول قسم: ضعیف:** - هغه پور ته ویل کېږي چي نه یو چا په پور نغدي پیسې ورکړي وي نه ئې سره زر او سپین زر په پور ورکړي وي او نه ئې د تجارت مال خرڅ کړی وي بلکي په بل سبب سره دغه پور د بل چا پر ذمه وي لکه د ښځي مهر چي د خاوند پر ذمه وي او داسي نور... نو حکم ئې دا دئ چي څومره پیسې وصولېږي د کال تر تېرېدو وروسته زکوة پر فرض دئ.

**دوهم قسم: متوسط:** - هغه پور ته ویل کېږي چي نه ئې نغدي پیسې په پور ورکړي وي او نه ئې سره او سپین زر ورکړي وي او نه ئې د تجارت مال خرڅ کړی وي بلکي بل داسي شی ئې خرڅ کړی وي چي د تجارت نه وي مثلاً د اغوستلو جامې او داسي نور ... او قیمت ئې پر بل چا پور باندي وي، نو حکم ئې دا دئ چي دغه پور که هر څومره وصول سي او د سپینو زرو د نصاب سره برابر وي او څو کاله وروسته وصول سو نو د تېرو کلو زکوة هم فرض دئ.

**دریم قسم: قوي:** - هغه پور ته ویل کېږي چي یا ئې نغدي پیسې یو

---

[1] ثم ان کان علی ضرب اهل الاسلام کالمکتوب علیه کلمة الشهادة فهو بمنزلة اللقطة ... و ان کان علی ضرب اهل الجاهلیة کالمنقوش علیه الصنم ففیه الخمس علی کل حال (هدایة: دوهم ټوک – ۵۴ مخ).

چا ته ورکړي وي یا ئې سره او سپین زر ورکړي وي او یا ئې د تجارت مال خرڅ کړی وي او قیمت ئې پر بل چا باندي وي او دوه یا درې کاله وروسته وصول سي نو حکم ئې دا دی که دغه پور دومره اندازه وصول کړي چي د سپینو زرو نصاب ته رسېږي نو د ټولو کلونو زکوة ادا کول فرض دي[1].

**ډاکټري فیس په زکوة کي ادا کول** :

که چیري ناروغ غریب وي د زکوة مستحق وي نو د ډاکټري فیس په زکوة کي د ادا کولو دوې طریقې دي :

**اوله طریقه** : ډاکټري فیس دي د زکوة مستحق مریض ته په لاس کي ورکول سي تر څو قبض راسي بیا دي ئې ډاکټر ته ورکړي او یا دي ئې د مریض د کور و افرادو ته د زکوة په نیت ورکړي هغوی دي فیس جمع کړي.

**دوهمه طریقه**: یا دي روغتون والا د مریض زباني یا تحریري وکیلان سي بیا چي د څومرو پیسو د مصرف ضرورت سي روغتون والا دي ئې د زکوة د پیسو څخه د وکیل په حیث استعمالوي، په دغه طریقه په دواړو صورتونو کي زکوة ادا کېږي[2].

---

[1] و اما سائر الدیون المقر بها فهي علی ثلاث مراتب ...ضعیف و هو کل دین ملکه بغیر فعله ... و وسط و هو ما یجب بدلا عن مال لیس للتجارة ... و قوي و هو ما یجب بدلا عن سلع التجارة اذا قبض اربعین زکي لما مضي کذا في الزاهدي (هندیه: اول ټوک – ۱۷۵ مخ).

[2] یشترط ان یکون الصرف تملیکا لا اباحة ... (درمختار : دوهم ټوک – ۳۴۴ مخ). و هو ان یوکل المدیون خادم الدائن فبقبض الزکاة ثم بقضاء دینه فبقبض الوکیل صار ملکا للموکل (ردالمحتار : دوهم ټوک – ۲۷۱ مخ).

**رضاعي اولاد ته زکوة ورکول:**

رضاعي اولادونه که غريبان او محتاج وي زکوة ورکول جائز دي ځکه چي د رضاعي اولادونو قرابت د حقيقي اولادونو د قرابت په ډول نه دئ او په ميراث کي هم حصه نه وړي البته نکاح ورسره حرامه ده مګر پرده نه ځني کېږي[1].

**رضاعي پلار او مور ته زکوة ورکول:**

رضاعي مور او پلار که غريبان وي او د زکوة مستحق وي زکوة ورکول جائز دي ځکه چي د دوی قرابت د حقيقي مور او پلار د قرابت په ډول نه دئ[2].

**د روژې په مياشت کي زکوة ادا کول :**

هره مياشت او هره ورځ زکوة ادا کول جائز دي د زکوة د ادا کولو لپاره کوم شرط يا ورځ يا مياشت مقرره او ټاکلې نه ده او نه د روژې د مياشتي تخصيص دئ بلکي څه وخت چي پر نصاب باندي کال تېر سي هغه وخت زکوة ادا کول بنه دي، مرګ هيڅ په باور نه دئ داسي نه وي چي زکوة ادا نه کړي او د قبر څخه تر قيامت پوري په سخت عذاب کي وي او دا چي زکوة ادا کول فرض دي او د روژې په مياشت کي د يوه فرض ثواب او يا (۷۰) چنده کېږي ځکه نو د زکوة په ادا کولو سره اويا چنده ثواب ورکول کېږي[3].

---

[1] ولا الی من بينهما ولاد او زوجية... (ردالمحتار: دوهم ټوک – ۳۴۶ مخ).

[2] ولا الی من بينهما ولاد او زوجية... (ردالمحتار: دوهم ټوک – ۳۴۶ مخ).

[3] ۱۳: عن سلمان قال خطبنا رسول الله ﷺ في آخر يوم من شعبان قال يا ايها الناس قد اظلکم شهر عظيم مبارک ... و من ادی فريضة فيه کان کمن ادی سبعين فريضة فيما سواه الخ (الترغيب والترهيب: دوهم

**د زکوة ادا کولو یو صورت:**

که د زکوة پیسې یو چا په کور کي ایښي وي او د کور دباندي د زکوة مستحق نفر پیدا سي او د جیب د پیسو څخه یو څه ورکړي بیا کور ته راسي او د زکوة د پیسو څخه هغه اندازه پیسې واخلي نو زکوة ادا کیږي[1].

**د زکوة په ادا کولو کي ځنډ کول:**

د هر کال زکوة د راروان کال تر مخه ورکول په کار دي او دغه احتیاط دئ مګر بې له عذره د زکوة په ادا کولو کي ځنډ کول مناسب عمل نه دئ بلکي مکروه کار دئ[2].

**که یو څوک بې له زکوة ادا کولو مړ سي:**

که چیري پر صاحب نصاب سړي باندي د کال تر تېرېدو وروسته زکوة واجب سو مګر بې له ادا کولو مړ سو او وارثان ئې ژوندي وي نو څو صورتونه دي:

**اول صورت:** که هغه د مرګ تر مخه د زکوة ورکولو وصیت کړی وي نو د میراث د مال د دریمي حصې څخه زکوة ورکول لازم دي[3].

**دوهم صورت:** او که چیري د زکوة ورکولو وصیت ئې نه وي کړی نو پر وارثانو ئې زکوة ورکول لازم نه دي البته که وارثان بالغان وي او ټول ئې په خوښه په اجتماعي ډول یا انفرادي ډول زکوة ادا کړي نو پر مړي به

---

ټوک – ۱۱۵ مخ).و تجب علی الفور عند تمام الحول حتي یاثم بتاخیره من غیر عذر (هندیه: اول ټوک - ۱۷۰مخ).

[1] و لایخرج المزکي عن العهدة بالعزل بل بالاداء للفقراء (درمختار: دوهم ټوک – ۲۷۰ مخ).

[2] زکوة کے مسائل کا انسائیکلوپیډیا: ۱۹۴مخ.

[3] لو اوصی باداء الزکاة یجب تنفیذ الوصیة من ثلث ماله (تاتارخانیه: دوهم ټوک – ۲۲۳ مخ).

ئې ډیر احسان وي او د عذاب څخه به خلاص سي او که ادا نه سي نو په عذاب کي به وي ځکه نو هر کال به خپله زکوة ادا کوي یا به وصیت لیکي چي زکوة ادا کړئ[۱].

**دریم صورت**: او که چیري یو څه وارثان نابالغ وي نو په دې صورت کي د مشترکه مال څخه زکوة ادا کول جائز نه دي بلکي مال پر شرعي طریقې باندي د تقسیم وروسته بالغان د خپلي حصې څخه زکوة ورکولای سي او د نابالغ کسانو حصې به امانت وروساتل سي یا به د ضرورت مطابق پر دوی باندي مصرف سي[۲].

**د زکوة په ورکولو سره احسان اچول یا تکلیف ورکول**:

ځیني کسان مستحقینو ته د زکوة تر ورکولو وروسته احسانونه باندي اچوي چي ما و تا ته دومره زکوة درکړی او ته زما فلانکی کار نه کوي نو داسي احسان اچول صحیح نه دي او په دې صورت کي زکوة د الله په دربار کي نه قبلیږي او دغه سړی به د ثواب څخه محروم وي[۳].

**زکوة زیات ادا کول**:

څومره زکوة چي واجب وي تر هغه زیات ورکول جائز دي زکوة هم ادا کیږي او ثواب هم زیاتیږي[۴].

---

[۱] اذا مات من علیه زکوة سقطت الزکاة عنه بموته (تاتارخانیه: دوهم ټوک – ۲۲۳ مخ).

[۲] قوله و لو مات فاداها وارثه جاز، في الجوهرة: اذا مات من علیه زکاة او فطرة او کفارة او نذر لم تؤخذ من ترکته عندنا الا ان یتبرع ورثته بذلک وهم من اهل التبرع ولم یجبروا علیه وان اوصی تنفذ من الثلث (ردالمحتار: دوهم ټوک – ۳۵۹ مخ).

[۳] ممنوعات الزکاة ثلاثۀ: ۱ - ان تبطل بالمن والاذی لان المن بالصدقة یحبطها اي یمنع ثوابها (فقه اسلامي: دریم ټوک – ۱۹۹۳ مخ).

[۴] فلو عجل شاة من اربعین وحال الحول وعنده تسعة وثلاثون فان کان دفعها للفقیر وقعت نفلا (ردالمحتار: دوهم ټوک – ۲۹۳ مخ).

**د زکوة څخه دخلاصون لپاره مال هبه کول**:

که یو سړی د زکوة د ساقطولو لپاره دغه چم وکړي چې کال ختمېدو ته نژدې سي نو مال یو چا ته تحفه کړي او د کال تر ختمېدو وروسته دغه هبه سوی مال بیرته واخلي نو په دې صورت کي خو زکوة ساقطېږي مګر داسي کول مکروه تحریمي دي ځکه چې په دې کار سره د فقیرانو تاوان دئ او د زکوة دروازه بندول دي او د الله تعالی د نعمت ناشکري هم ده[1].

**د زکوة عملي ثبوت**:

**اول**: د زکوة ورکول د دې خبري ثبوت دئ چې د انسان سره کوم شیان وجود لري دی ئې خپل نه بولي بلکي د الله تعالی ئې بولي او پر دې باندي یقین لري او د الله تعالی د رضا لپاره او هغه ته د قرب لپاره خپل مال قربانوي.

**دوهم**: انسان د زکوة په ورکولو سره د الله تعالی د بندګۍ اظهار کوي.

**دریم**: د زکوة په وجه د پرېشان حالو کسانو کومک او خدمت کېږي.

**څلورم**: د مال محبت او د دولت شوق چې د ایمان لپاره ډېر انتهایي هلاکونکې روحاني ناجوړي ده زکوة د هغې ناجوړۍ علاج دئ او د مال د بدو او نجسو اثراتو څخه انسان پاکوي[2].

**د زکوة مقصد**:

د زکوة مقصد دا دئ چې مال او دولت باید د یوه چا سره پاته نه سي

---

[1] زکوة کے مسائل کا انسائیکلوپیډیا: ۲۰۱ مخ.

[2] زکوة کے مسائل کا انسائیکلوپیډیا: ۲۰۳ مخ.

بلکي د قوم و ټولو کسانو ته تقسیم سي[۱].

**د زکوة تشهیر کول:**

**اول**: د زکوة تشهیر په دې نیت کول چي د زکوة ورکوونکو لپاره ترغیب وي صحیح دئ او فقهاء کرامو فرمایلي دي چي د ترغیب لپاره علی الاعلان زکوة ادا کول افضل دي او نفلي خیراتونه پټ ادا کول بهتر دي[۲].

**دوهم**: د ریاء او شهرت په غرض د زکوة تشهیر کول جائز نه دي بلکي ثواب ئې هم ختمیږي[۳].

**د زکوة د وصولولو لپاره د تللو فضیلت:**

**اول**: د حضرت رافع بن خدیج ﷺ څخه روایت دئ چي نبي کریم ﷺ وفرمایل: د صدقاتو عامل (وصولوونکی) چي په صحیحه طریقه د الله ﷻ لپاره کار وکړي هغه چي تر څو و کور ته راغلی نه وي د الله ﷻ په لارکي د غازي په مثال دئ[۴].

**دوهم**: د حضرت ابوهریره ﷺ څخه روایت دئ چي نبي کریم ﷺ وفرمایل: بهترینه ګټه د عامل ګټه ده په دې شرط چي په خیرخواهي او

---

[۱] زکوة کے مسائل کا انسائیکلوپیڈیا : ۲۰۳ مخ.

[۲] اذا اراد الرجل اداء الزکاة الواجبة قالوا الافضل الاعلان والاظهار و في التطوعات الفضل هو الاخفاء والاسراء (هندیه: اول ټوک – ۱۷۱ مخ).

[۳] و عن جندب قال قال رسول الله ﷺ من سمع سمع الله به و من یرائي یرائي الله به متفق علیه (مشکوة: ۴۵۴ مخ).

[۴] عن رافع بن خدیج ﷺ قال سمعت رسول الله ﷺ یقول العامل علی الصدقة بالحق کالغازي في سبیل الله حتی یرجع الی بیته (ترمذي شریف: ص ۲۵۸، ج۱).

صحیح طریقه سره کار وکړي[1].

**که یو چا ټول مال خیرات کړی:**

که یو نفر د کال تر پوره کېدو وروسته او د زکوة تر ادا کولو دمخه بې له نیته د زکوة ټول مال خیرات کړي نو زکوة ئې معاف دئ[2].

**کلنۍ چي کومه غله زیاته سي:**

که یو چا د کور لپاره مثلاً وریجي، غنم او داسي نور د ټول کال لپاره رانیولي وي او مصرفوي ئې او د کال تر ختمیدو وروسته یو څه پاته سي نو زکوة پکښي واجب نه دئ ځکه چي دغه مال د تجارت لپاره نه دئ[3].

**د سفیرانو څخه چي د زکوة مال ضائع سي :**

که د مدرسو د سفیرانو څخه د زکوة مال غلا سي یا د مهتمم څخه د زکوة مال غلا سي یا ضائع سي او په حفاظت کي ئې کومه کوتاهي نه وي سوې نو پر دوی باندي تاوان لازم نه دئ او د زکوة ورکوونکو زکوة ادا سو ځکه چي دغه کسان د مستحقینو طالبانو وکیلان دي او د وکیل قبضه د مستحقینو طالبانو قبضه ده او که چیري دغو کسانو د زکوة د مال په حفاظت کي کوتاهي کړې وه یا ئې د زکوة پیسې بدلي کړي وې او یا ئې د خپلو پیسو سره ګډي کړي وې نو په دې صورت کي پر دغو خلکو تاوان لازم دئ او د خپل جیب څخه به هغومره اندازه پیسې

---

[1] ٦٢١٣ : و عن ابي هريرة رضي الله عنه عن النبي صلى الله عليه وسلم قال خير الكسب كسب يد العامل اذا نصح (مجمع الزوائد : څلورم ټوک – ٦٧ مخ).

[2] و من تصدق بجميع نصابه ولا ينوي الزكاة سقط فرضها و هذا استحسان كذا في الزاهدي (هنديه : اول ټوک – ١٧١ مخ).

[3] و منها فراغ المال عن حاجته الاصلية ... وكذا طعام اهله (هنديه : اول ټوک – ١٧٢ مخ).

ورکوي[١].

**د زکوة وصولوونکي ته هديه يا تحفه ورکول:**

**اول**: که د زکوة وصولوونکي ته د زکوة په وجه تحفه يا هبه ورکول کېږي نو دده لپاره دغه هديه او تحفه اخيستل جائز نه ده[٢].

**دوهم**: او که چيري د زکوة په خاطر دغه تحفه نه ورکول کېږي بلکي د همېشه څخه ئې دغه عادت وو او د تحفې ورکولو تعلقات ئې وه بيا نو هديه او تحفه وصول کوونکي ته اخيستل روا ده[٣].

---

[١] و به يعلم حکم من يجمع للفقراء و محله ما اذا لم يوکلوه فان کان وکيلا من جانب الفقراء ايضاً فلا ضمان عليه (البحرالرائق: دوهم ټوک – ٣٦٩مخ، و لو خلط زکاة موکليه ضمن وکان متبرعا الا اذا وکله الفقراء (درمختار: دوهم ټوک – ٢٦٩ مخ).

[٢] قال ابن السرح ابن الانبية على الصدقة فجاء فقال هذا لکم وهذا اهدى لي ... وقال ما بال العامل ... فينظرا يهدي له ام لا (ابوداؤد: دوهم ټوک – ۴٠٩ مخ).

[٣] ان القاضي لايجيب دعوة رجل الا ان يکون من متعلقيه او کان يدعوه قبل نصبه على منصب القضاء (عرف الشذي على الترمذي: اول ټوک – ٣٨٠ مخ).

# دريم باب

# په حيواناتو کي زکوة

## سائمه څه معنی؟

سائمه هغو حيواناتو ته ويل کېږي چي د کال ډېره حصه دباندي د څرو هلو په ځای کي په داسي وښو تېروي چي رانيول سوي نوي[1].

## څرووهونکي حيوانان:

اوښان، آسان، پسونه، غوايان او داسي نور ... داسي څروهونکي حيوانات به وي چي په وچه کي به د نسل د ډېروالي لپاره پېول کېږي او که چيري د خرڅولو لپاره پېول کېدل نو بيا هغه د تجارت لپاره دي زکوة يې په پيسو کي دئ[2].

## په اوښو او اوښانو کي زکوة:

- ★ تر پنځو کمو اوښانو کي زکوة نسته چي کله پنځو ته ورسېدل او کال باندي تېر سو نو يو پسه پکښي سته تر نهو (٩) اوښانو پوري[3].
- ★ کله چي لس سي نو دوه پسونه پکښي سته تر څورلسو پوري[4].

---

[1] وشرعا المکتفية بالرعي المباح ذکره الشمني في اکثر العام لقصد الدر والنسل (درمختار: دوهم ټوک – ٢٧۵ مخ).

[2] السائمة هي التي تسام في البراري لقصد الدر والنسل لا لقصد الحمل والرکوب والبيع، و في التي تسام لقصد البيع زکوة تجارة (هدايه: دوهم ټوک – ١٣ مخ).

[3] ليس في اقل من خمس ذود صدقة فاذا بلغت خمسا سائمة وحال عليها الحول ففيها شاة (هدايه: دوهم ټوک – ١٣ مخ).

[4] فاذا کانت عشرا ففيها شاتان الی اربع عشر (هدايه: دوهم ټوک – ١٣ مخ).

✶ کله چي پنځلس سي نو درې پسونه پکښې سته تر نونس پوري[١].
✶ کله چي شل سي نو څلور پسونه پکښې سته تر څليرويشتو پوري[٢].
✶ کله چي پنځه ويشت سي نو ييا دوه کلنه اوښه پکښې سته تر پنځه دېرشو پوري[٣].
✶ کله چي شپږ دېرش سي نو درې کلنه اوښه پکښې سته تر پنځه څلوېښتو پوري[٤].
✶ کله چي شپږ څلوېښت سي نو څلور کلنه اوښه پکښې سته تر شپېتو پوري[٥].
✶ کله چي يو شپېته سي نو پنځه کلنه اوښه پکښې سته تر پنځه اويا پوري[٦].
✶ کله چي شپږ اويا سي نو دوې درې کلني اوښې پکښې سته تر نيوي پوري[٧].
✶ کله چي يو نيوي سي نو دوې څلور کلني اوښې پکښې سته تر يو سل شلو پوري[٨].
✶ کله چي تر يو سل شلو زياتي سي نو په هرو پنځو اوښانو کي يو

---

[١] فاذا كانت خمس عشرة ففيها ثلاث ... (هدايه: دوهم ټوک – ۱۳ مخ).
[٢] فاذا كانت عشرين ففيها اربع (هدايه: دوهم ټوک – ۱۳ مخ).
[٣] فاذا بلغت خمساً وعشرين ففيهابنت مخاض (هدايه: دوهم ټوک – ۱۳ مخ).
[٤] فاذا كانت ستا وثلاثين ففيها بنت لبون (هدايه: دوهم ټوک – ۱۳ مخ).
[٥] فاذا كانت ستا واربعين ففيها حقة (هدايه: دوهم ټوک – ۱۳ مخ).
[٦] فاذا كانت احدى وستين ففيها جذعة (هدايه: دوهم ټوک – ۱۳ مخ).
[٧] فاذا كانت ستا وسبعين ففيها بنتالبون الى تسعين (هدايه: دوهم ټوک – ۱۳ مخ).
[٨] فاذا كانت احدى وتسعين ففيها حقتان (هدايه: دوهم ټوک – ۱۳ مخ).

پسه دئ د دوو څلور کلنو اوښو سره (یعني په یو سل پنځه ویشتو کي)[١].

✶ په یو سل دېرشو کي دوه پسونه دي د دوو څلور کلنو اوښو سره[٢].

✶ په یو سل پنځه دېرشو کي درې پسونه دي د دوو څلور کلنو اوښو سره[٣].

✶ په یو سل څلوېښتو کي څلور پسونه دي د دوو څلور کلنو اوښو سره [٤].

✶ په یو سل پنځه څلوېښتو کي یوه دوه کلنه اوښه ده د دوو څلور کلنو اوښو سره[٥].

✶ په یو سل پنځوسو کي درې څلور کلني اوښي دي[٦].

✶ اوس نو بیا هغه فریضه راتکرارېږي نو چي کله یو سل پنځوس سي یو پسه دئ او درې څلور کلني اوښي دي[٧].

✶ په یو سل شپېتو کي دوه پسونه او درې څلور کلني اوښي دي[٨].

✶ په یو سل پنځه شپیتو کي درې پسونه او درې څلور کلني اوښي

---

[١] اذا زادت الابل علی مائة وعشرین فلا شیئ في الزیادة حتي تبلغ خمسا فیکون فیها شاة و حقتان (بدائع : دوهم ټوک – ١٢٠ مخ).

[٢] و في العشر شاتان و حقتان (بدائع: دوهم ټوک – ١٢٠ مخ).

[٣] و في خمسة عشر ثلاث شیاه وحقتان (بدائع : دوهم ټوک – ١٢٠ مخ).

[٤] و في عشرین اربع شیاه وحقتان (بدائع: دوهم ټوک – ١٢٠ مخ).

[٥] و في خمس وعشرین بنت مخاض وحقتان (بدائع: دوهم ټوک – ١٢٠ مخ).

[٦] الی مائة وخمسین ففیها ثلاث حقاق (بدائع: دوهم ټوک – ١٢٠ مخ).

[٧] ثم یستانف الفریضة ... حتي تبلغ خمسا فیکون فیها شاة وثلاث حقاق (بدائع : دوهم ټوک – ١٢٠ مخ).

[٨] و في العشر شاتان وثلاث حقاق (بدائع: دوهم ټوک – ١٢٠ مخ).

دي[١].

✶ په یوسل اویا کي څلور پسونه او درې څلور کلني اوښې دي[٢].

✶ په یوسل پنځه اویا کي یوه دوه کلنه اوښه او درې څلور کلني اوښې دي[٣].

✶ په یوسل اتیا کي یوه درې کلنۍ او درې څلور کلنۍ اوښې دي[٤].

✶ په یوسل شپږ نیوي کي څلور څلور کلنۍ اوښې دي تر دوو سوو پوري[٥].

✶ د یوسل پنځوسو څخه تر دوو سوو پوري چي کوم نصاب دئ د همېشه لپاره همدغه تکرارېږي[٦].

✶ د اوښانو په زکوة کي یوازي ماده اوښې اخیستل کېږي نه نر[٧].

✶ په جونګیانو کي زکوة نسته[٨].

## په غوا او غویانو کي زکوة:

✶ تر دېرشو کمو غوا او غویانو کي چي څرو هونکي وي زکوة نسته چي کله دېرش څرو هونکي سوې او کال باندي تېر سو نو یوه دوه

---

[١] و في خمس عشرة ثلاث شیاه و ثلاث حقاق (بدائع: دوهم ټوک – ١٢٠ مخ).

[٢] و في عشرین اربع شیاه و ثلاث حقاق (بدائع: دوهم ټوک – ١٢٠ مخ).

[٣] فاذا بلغت مائة و خمس و سبعین ففیها بنت مخاض و ثلاث حقاق (بدائع: دوهم ټوک – ١٢٠ مخ).

[٤] فاذا بلغت مائة و ستة و ثمانین ففیها بنت لبون و ثلاث حقاق (بدائع: دوهم ټوک – ١٢٠ مخ).

[٥] الي مائة و ستة و تسعین ففیها اربع حقاق الی مائتین (بدائع: دوهم ټوک – ١٢٠ مخ).

[٦] ثم یستانف الفریضة ابدا في کل خمسین کما استؤنفت من مائة و خمسین الی مائتین (بدائع: دوهم ټوک – ١٢٠ مخ).

[٧] بخلاف زکاة الابل فانه لایؤخذ فیها الا الاناث (المبسوط: دوهم ټوک – ٢٥١ مخ).

[٨] ولیس في الحملان والفصلان والعجاجیل زکاة (المبسوط: دوهم ټوک – ٢١٢ مخ).

کلنۍ ګیلګۍ یا ګستره ده[١].

* تر نهه دېرشو پورې یا هیڅ شی نسته چې کله څلوېښت سي نو یو درې کلنۍ ګیلګۍ یا ګستره ده[٢].
* کله چې تر څلوېښتو زیات سي نو تر شپېتو پورې د هر حیوان د زیاتوب په اندازه زکوة ورکول کېږي[٣].
* کله چې حساب تر شپېتو زیات سي نو بیا د حساب مدار پر دېرشو او څلوېښتو راګرځي یعني په هرو دېرشو غواوو یا غویانو کي دوه کلنۍ ګیلګۍ یاګستره ده او په هرو څلوېښتو غواوو او یا غوایانو کي درې کلنۍ ګیلګۍ یا ګستره ده، د دېرشو او څلوېښتو تر منځ نهه معاف دي[٤].
* که اویا غواوي یا غوایان سي نو یوه د درو کلو ګستره او یوه د دوو کلو ګیلګۍ ده[٥].
* کله چې اتیا سي نو دوې درې کلنۍ ګستري دي[٦].
* کله چې نیوي سي نو درې دوې کلنۍ ګستري دي[٧].

---

[١] لیس في اقل من ثلاثین من البقر السائمة صدقة فاذا کانت ثلاثین سائمة وحال علیها الحول ففیها تبیع او تبیعة وهي التي طعنت في الثانیة (هدایه: دوهم ټوک – ١٧ مخ).

[٢] ولا شیئ في الزیادة الی تسع وثلاثین فاذا بلغت اربعین الخ (بدائع: دوهم ټوک – ١٢٢ مخ).

[٣] و هذا یدل علی انه لانصاب عنده في الزیادة علی الاربعین وانه تجب فیه الزکاة قل او کثر بحساب ذلک (بدائع: دوهم ټوک – ١٢٢ مخ).

[٤] فاذا زاد علی الستین یدار الحساب علی الثلاثینات والاربعینات ... ویجعل تسعة بینهما عفوا بلاخلاف فیجب في کل ثلاثین تبیع او تبیعة و في کل اربعین سنة (بدائع: دوهم ټوک – ١٢٢ مخ).

[٥] فاذا کانت سبعین ففیها مسنة وتبیع (بدائع: دوهم ټوک – ١٢٢ مخ).

[٦] و في ثمانین مسنتان (بدائع: دوهم ټوک – ١٢٢ مخ).

[٧] و في تسعین ثلاثة اتبعة (بدائع: دوهم ټوک – ١٢٢ مخ).

- ✶ کله چي سل سي نو یوه درې کلنۍ ګستره او دوه دوه کلني ګلګیان دي[١].
- ✶ کله چي یوسل لس سي نو دوې درې کلنۍ ګستري او یوه دوه کلنۍ ګیلګۍ دي[٢].
- ✶ کله چي یوسل اوشل سي نو درې درې ګلنۍ ګستري دي یا څلور دوې کلنۍ ګستري دي[٣].
- ✶ پر پورتني لیکل سوي حساب باندي د غواوو او غویانو د زکوة دار او مدار دئ[٤].
- ✶ دا خبره ضروري ده چي د ګامېښو او غواوو یا غوایانو په نصاب او زکوة کي فرق نسته ځکه چي ګامېښه د غواوو یو قسم دئ[٥].
- ✶ د غواوو او غوایانو د زکوة په اخیستلو کي نر او ښځه ماده فرق نه لري[٦].
- ✶ په ګلګیانو کي زکوة نسته[٧].

## په پسو، میږو او بزو کي زکوة:

- ✶ تر څلوېښتو (۴٠) په کمو پسو کي زکوة نه سته چي کله څلوېښت

---

[١] و في مائة مسنة و تبيعان (بدائع: دوهم ټوک – ١٢٢ مخ).
[٢] وفي مائة و عشرة مسنتان و تبيع (بدائع: دوهم ټوک – ١٢٢ مخ).
[٣] و في مائة و عشرين ثلاث مسنتان او اربعة اتبعة (بدائع: دوهم ټوک – ١٢٢ مخ).
[۴] و علی هذا الاعتبار يدار الحساب (بدائع: دوهم ټوک – ١٢٢ مخ).
[۵] والجواميس والبقر سواء... اذ هو نوع منه (هدایه: دوهم ټوک – ١٩ مخ).
[٦] لافرق بين الذكور والاناث في زكاة البقر (المبسوط: ١ – ٢ ټوکونه – ٢۵١ مخ).
[٧] و ليس في الفصلان والحملان والعجاجيل زكوة (المبسوط: ١ - ٢ ټوکونه – ٢١٢ مخ).

ځړوهونکي سي نو يو پسه دئ تر يو سل شلو (۱۲۰) پوري[۱].

- ✶ کله چي يو سل او يو ويشت (۱۲۱) سي نو بيا دوه پسونه دي تر دوو سوو پوري[۲].
- ✶ کله چي تر دوو سوو يو دانه زيات سي نو بيا درې پسونه دي تر ځلور سوو پوري[۳].
- ✶ کله چي ځلور سوه سي نو ځلور پسونه دي[۴].
- ✶ او بيا په هرو سلو کي يو يو پسه زياتيږي[۵].
- ✶ مېږي او بزې په زکوة ورکولو کي سره برابري دي فرق نه لري[۶].
- ✶ د پسو په زکوة کي نر او ماده دواړه ډوله اخيستل کېدلای سي[۷].
- ✶ په وريانو کي زکوة نسته[۸].

## په آسانو کي زکوة:

- ✶ که چيري آسان د سپرتيا يا بار وړلو لپاره او د جهاد في سبيل الله لپاره وي نو بيا زکوة پکښي نسته[۹].

---

[۱] فليس في اقل من اربعين من الغنم زكاة فاذا كانت اربعين ففيها شاة الى مائة وعشرين (بدائع: دوهم ټوک – ۱۲۳ مخ).

[۲] فاذا كانت مائة واحدى وعشرين ففيها شاتان الى مائتين (بدائع: دوهم ټوک – ۱۲۳ مخ).

[۳] فاذا زادت واحدة ففيها ثلاث شياه الى اربع مائة (بدائع: دوهم ټوک – ۱۲۳ مخ).

[۴] فاذا كانت اربع مائة ففيها اربع شياه (بدائع: دوهم ټوک – ۱۲۳ مخ).

[۵] ثم في كل مائة شاة وهذا قول عامة العلماء (بدائع: دوهم ټوک – ۱۲۳ مخ).

[۶] والضان والمعز سواء لان لفظة الغنم شاملة للكل (هدايه: دوهم ټوک – ۲۰ مخ).

[۷] و يؤخذ في زكاة الغنم الذكور والاناث (هدايه: دوهم ټوک – ۲۱ مخ).

[۸] و ليس في الفصلان والحملان والعجاجيل زكاة (المبسوط: ص ۲۱۲، ج ۱ – ۲).

[۹] بان كانت تعلف للركوب او للحمل او للجهاد في سبيل الله فلا زكاة فيها لانها مشغولة بالحاجة (بدائع: دوهم ټوک – ۱۳۳ مخ).

* او که چیري آسان د تجارت لپاره وي نو بیا زکوة سته[۱].
* که څړ وهونکي آسان نر او ماده سره ګډ وه نو خاوند ئې اختیار لري که د هر آس پر ځای یو دینار ورکوي[۲].
* او که یې د خاوند خوښه سي نو قیمت دي ئې کړي او په هرو دوو سوو درهمو کي دي پنځه درهمه ورکړي[۳].
* یوازي په نرو آسانو کي زکوة نسته[۴].
* یوازي په ماده آسانو کي هم زکوة نسته[۵].
* په غاترو او خرو کي زکوة نسته، ځکه نبي کریم ﷺ فرمایي: د خرو او غاترو په باره کي پر ما باندي هیڅ شی نه دئ نازل سوی[۶].
* او که چیري خره اوغاتري د تجارت لپاره وي نو بیا د دوی په مالیت کي زکوة سته لکه د تجارت نور مالونه[۷].

## متفرق مسائل:

## که چا د حیوان شیدې خرڅي کړې:

که یو څوک د حیوانانو شیدې خرڅوي نو د کال تر تېرېدو وروسته

---

[۱] وان کانت تعلف للتجارة ففیها الزکاة بالاجماع (بدائع: دوهم ټوک – ۱۳۳ مخ).
[۲] اذا کانت الخیل سائمة ذکورا و اناثا فصاحبها بالخیار ان شاء اعطی عن کل فرس دینارا (هدایه: دوهم ټوک – ۲۱ مخ).
[۳] و ان شاء قومها واعطی عن کل مائتی درهم خمسة دراهم (بدائع: دوهم ټوک – ۱۳۳ مخ).
[۴] و اما في الذکور المنفردین لاشي فیها في ظاهر الروایة (المبسوط: دوهم ټوک – ۲۵۳ مخ).
[۵] وان کان کلها اناثا ... والصحیح انه لا زکاة فیها (بدائع: دوهم ټوک – ۱۳۵ مخ).
[۶] قال علیه السلام: لم ینزل علي فیهما شئ. یعني في البغال والحمیر. (نصب الرایه: دوهم ټوک – ۳۶۶ مخ).
[۷] الا ان تکون للتجارة لان الزکاة حینئذ تتعلق بالمالیة کسائر اموال التجارة (هدایه: دوهم ټوک – ۲۳ مخ).

چي دغه پيسې نصاب ته رسېدلي وي زکوة پر واجب دئ[1].

**که د څرېدلو ځای يو نه وي:**

که يو څوک څلوېښت حيوانان لري خو يو مزدور شل حيوانان يو ځای پيايي او بل مزدور شل حيوانان بل ځای پيايي نو پروا نه لري ځکه چي د احنافو په مذهب د څرېدلو د ځای يووالی ضروري نه دئ نو که دغه څلوېښت حيوانان د يوه سړي ملکيت وي او کال باندي تېر سي زکوة پکښي واجب دئ[2].

**په کور کي د پالل سوو حيواناتو زکوة:**

کوم حيوانان چي د تجارت په غرض په کور کي ساتل کېږي خو د خوراک انتظام ئې يا په کور کي سوی وي او يا دباندي نو داسي حيوانان د تجارت د سامان په منزله دي د کال تر تېرېدو وروسته زکوة پکښي واجب دئ په دې شرط چي قيمت به ئې د سپينو يا سرو زرو نصاب ته رسېدلی وي[3].

**په تجارتي حيواناتو کي زکوة:**

کوم حيوانان چي د تجارت په نيت پالل کېږي په هغوی کي د حيوانانو د زکوة نصاب ضروري نه دئ بلکي د هغوی قيمت چي

---

[1] و منها کون المال نصابا فلاتجب في اقل منه (هنديه: دوهم ټوک – ۱۷۲ مخ).

[2] الخليطان في المواشي کغير الخليطين ... و سواء کانت في مرعى واحد او في مراعي مختلفة فان کان نصيب احدهما يبلغ نصابا و نصيب الاخر لايبلغ نصابا وجبت الزکوة على الذي يبلغ نصيبه نصابا دون الاخر (هنديه: اول ټوک – ۱۸۱ مخ).

[3] الزکاة واجبة في عروض التجارة ... اذا بلغت قيمتها نصابا من الفضة او الذهب (هدايه: ص ۴۰، ج۲). والمراد بنفي الزکوة عن العلوفة زکاة السائمة لانها لو کانت للتجارة وجبت فيها زکاة التجارة (البحر الرائق: دوهم ټوک – ۳۸۲ مخ).

د وپنځوس نیمو تولو سپینو زرو یا شل مثقاله سروزرو ته ورسېږي زکوة واجب دئ که دهغو تعداد د زکوة نصاب ته رسېږي او که نه رسېږي[۱].

## د حیواناتو پر ځای قیمت ورکول:

په زکوة کي بعینه د هغه شي ورکول ضروري نه دي بلکي قیمت ئې هم ورکول کېږي او ډېر وخت قیمت ورکول بهتر وي[۲].

## کورني حیوانات:

کوم حیوانان چي په کور کي پالل کېږي او د هغوی لپاره خوراکه په قیمت رانیول کېږي خو د کال کمه حصه دباندي پېول کېږي او یا د خپل ضرورت لپاره په کور کي ساتل کېږي نو پر هغو باندي زکوة نسته[۳].

## د حیواناتو متعدد نصابونه:

که د یو چا سره د مختلفو حیواناتو متعدد نصابونه وه او د هغوی څخه د یوه نصاب زکوة تر مخه ورکړي خو اتفاقاً هغه حیوانان چي زکوة ئې تر مخه ورکړی وو هلاک سوه نو دغه ورکول سوی زکوة د پاته سوو حیوانانو له طرفه نه سي شمېرل کېدلای[۴].

---

[۱] الزکوة واجبة في عروض التجارة کائنة ماکانت اذا بلغت قیمتها نصابا من الورق والذهب (هدایه: دوهم ټوک – ۴۰ مخ).

[۲] ویجوز دفع القیم في الزکاة عندنا وکذا في الکفارات وصدقة الفطر والعشر والنذر. (هدایه: دوهم ټوک – ۲۷ مخ).

[۳] ولیس في العوامل والحوامل والعلوفة صدقة ... ثم السائمة هي التي تکتفي بالرعي في اکثر الحول حتي لو اعلفها نصف الحول او اکثر کانت علوفة لان القلیل تابع للاکثر (هدایه: دوهم ټوک – ۲۸ مخ).

[۴] ولو ملک نصابا من حیوانات مختلفة فجعل زکاة البعض فهلک المودي عنه لایقع عن الباقي (هندیه: اول ټوک – ۱۷۶ مخ).

**د کښت (زراعت) لپاره په ساتل سوو حیواناتو کي زکوة:**

کوم حیوانان چي د کښت لپاره پالل کېږي که څه هم دباندي څرېږي وهونکي وي زکوة پکښي واجب نه دئ[1].



---

[1] لکن في البدائع لو اسامها للحم فلازكاة فيها کمالواسامها للحمل والرکوب (درمختار: دوهم ټوک – ۲۷۵ مخ).

# څلورم باب

## د سپينو، سرو زرو او نغدو زكوة

### د زېوراتو زكوة:

كله چې زېورات د يو چا په ملكيت كې وي او استعمالوي ئې نو زكوة پر هغه نفر باندې دئ او كه چيرې زكوة ادا نه كړې نو ګناهكار دئ[1].

### كه په زرو كې قيمتي ډبرې وي:

كه چيرې په زرو كې قيمتي ډبرې مثلاً فېروزه، ياقوت او داسې نور كار سوي وي نو په ډبرو كې زكوة نسته كه د تجارت له پاره نه وي البته په زرو كې زكوة واجب دئ[2].

### كه سپين زر خالص نه وي:

كه سپين زر خالص نه وي بلكې يو څه نور شيان ورسره ګډ وي نو د غالب جزء اعتبار دئ كه سپين زر غالب وي نو سپين زر شميرل كېږي او كه نصاب ته رسېدلي وي يا زيات وي بيا زكوة پر فرض دئ او كه ګډ سوي شيان زيات وي نو بيا زكوة نسته البته كه دغه ګډ سوي شيان د تجارت لپاره وه بيا د تجارت د حسابه زكوة وركول كېږي[3].

---

[1] قال رسول الله ﷺ ما من صاحب ذهب ولا فضة لايؤدي منها حقها الا اذا كان يوم القيمة صفحت له صفائح من نار فاحمي عليها في نارجهنم فيكوى بها جنبه وجبينه وظهره (صحيح المسلم: اول ټوک – ۳۱۸ مخ).

[2] واما اليواقيت واللالي والجواهر فلا زكاة فيها وان كانت حليا الا ان تكون للتجارة (هنديه: اول ټوک – ۱۸۰ مخ).

[3] و غالب الفضة والذهب فضة وذهب و ما غلب غشه منهما يقوم كالعروض ويشترط فيه النية الا اذا كان يخلص منه مايبلغ نصابا او اقل وعنده ما يتم به او كانت اثمانا رائجة وبلغت نصابا من ادنى فقد تجب زكاته فتجب والا فلا (درمختار: دوهم ټوک – ۳۰۰ مخ).

**د سپینو زرو نصاب:**

د سپینو زرو نصاب دوپنځوس نیمي تولې سپین زر دي چي په موجوده وزن دومره (۳٦ ملي او ٦۱۲) ګرامه کېږي، که د سپینو زرو پر نصاب یو کال تېر سي نو په هرو څلویښتو حصو کي څلویښتمه حصه زکوة ادا کول لازم دي[1].

**که د چا سره سپین زر تر نصاب کم وه:**

او که د چا سره یوازي سپین زر وه او تر دوپنځوس نیمو تولو کم وه نه د هغه سره سره زر وه نه نغدي پیسې وي او نه د تجارت مال او نه نور د زکوة قابل شیان وه نو تر دوپنځوس نیمو تولو کمو سپینو زرو کي زکوة فرض نه دئ[2].

**که تر نصاب کم سپین زر وه او نور قابل زکوة مال وو:**

که د چا سره تر نصاب کم سپین زر وه مګر د هغه سره یا نور سره زر وه یا نغدي پیسې وې یا نور څه وه نو د ټولو شیانو د خرڅولو قیمت دي جمع کړي که د دوپنځوس نیمو تولو سپینو زرو د قیمت سره برابر سو نصاب پوره دئ د کال تر تېرېدو وروسته دي د ټوله قیمت څخه په هرو څلویښتو حصو کي څلویښتمه حصه زکوة ورکړي[3].

---

[1] والفضة مائتا درهم... ففي كل اربعين درهما درهم (درمختار: دوهم ټوک – ۲۹۹ مخ).

[2] فان كان له فضة مفردة فلا زكاة فيها حتى تبلغ مائتي درهم و زنا وزن سبعة الخ (بدائع: دوهم ټوک – ۱۰۰ مخ).

[3] وقيمة العرض للتجارة تضم الي الثمنين .... ويضم الذهب الى الفضة قيمة (درمختار: دوهم ټوک – ۳۰۳ مخ).

**که د نصاب برابر یا زیات سپین زر وه نو په هر صورت کي زکوة سته :**

که د چا سره دنصاب برابر یا زیات سپین زر وه د کال تر تېرېدو وروسته زکوة ادا کول لازم دي که هغه سپین زر په کاروبار کي ولګوي زیات سي او که زیات نه سي په دواړو صورتو کي زکوة واجب دئ ځکه چي الله تعالی سپین زر د (ثمن) یعني د سکې په ډول پیدا کړي دي تر څو د هغه په تجارت سره د مال زیاتوالي امکان ولري اوس نو که یو سړی په دې باندي تجارت نه کوي او یا ئې زر همداسي ایښي وي او مال نه په زیاتېږي نو شریعت ذمه دار نه دئ بلکي هغه سړی خپله ذمه دار دئ[1] .

**د سپینو زرو نصاب معیار دئ:**

که د یو چا سره نه د سرو زرو نصاب پوره وي او نه د سپینو زرو نصاب پوره وي بلکي یو څه سره زر وي یو څه سپین زر وي یا یو څه نغدي روپۍ یا د تجارت مال وي نو په دې صورت کي د سپینو زرو د قیمت په حساب باندي حساب لګول کېږي که د سپینو زرو په حساب باندي نصاب پوره سو نو زکوة واجب دئ او که نه سو پوره نو واجب نه دئ، د دوو وجهو په خاطر :

**اول**: زکوة د فقیرانو د ګټې لپاره دئ او د سپینو زرو د نصاب د حساب په صورت کي فقیرانو ته زیات زکوة ورکول کېږي او ګټه ئې ډیره ده او د سرو زرو د نصاب د حساب په صورت کي کمه ګټه ده او پر لږو کسانو زکوة واجب کېږي او په زکوة کي د فقیرانو زیات خیال ساتل سوی دئ تر څو د ټولني څخه غربت او مسکنت ختم سي .

---

[1] لانهما خلقا لیتوصل بهما ... و هذا معنی الاستنماء فقد خلقا للاستنماء ... فالنماء التقدیري حاصل وهو المعتبر للاجماع (فتح القدیر : دوهم ټوک – ۲۲۲ مخ).

**دوهم**: په دې کي احتياط هم زيات دئ چي کله په نغدو او نورو شيانو د سپينو زرو نصاب پوره کېږي او د سرو زرو نصاب نه پوره کېږي نو احتياط په دې کي دی چي په کوم نصاب سره نصاب پوره کېږي هغه معتبر سي[1].

**د سپينو زرو په تار کي زکوة**:

کله کله د ښځو په قيمتي جامو کي د سپينو زرو تارونه استعمال سوي وي د داسي جامو د زکوة د ايستلو طريقه دا ده چي د سپينو زرو د تارو اندازه دي معلومه سي که نصاب ته رسېدل زکوة لازم دئ او که تارونه تر نصاب کم وه زکوة لازم نه دئ.

د تارو د اندازې د معلومولو طريقه دا ده: چي بې له تار والا جامې دي وتلل سي او تارونه دي جلا وتلل سي نو وزن ئې معلومېږي[2].

**د سرو زرو نصاب**:

د سرو زرو نصاب شل (۲۰) مثقاله يا اووه نيمي تولې چي (۳٦ ملي او ۹۱) ګرامه کېږي، که سره زر نصاب ته رسېدلي وي نو د کال تر تېرېدلو وروسته ئې زکوة ادا کول ضروري دي[3].

**که سره زر تر نصاب کم وه**:

که د نارينه او يا ښځي سره يوازي سره زر وي او تر نصاب کم وي د

---

[1] و كذا يضم بعض اموال التجارة الى البعض ... انه يقوم باوفي القيمتين من الدراهم والدنانير.... وكذا روي عن ابي حنيفة في الاموال انه يقومها بانفع النقدين للفقراء .... والتقويم بهما سواء لكنا رجحنا احدهما بمرجح وهو النظر للفقراء والاخذ بالاحتياط (بدائع: دوهم ټوک – ۱۱۰ مخ).

[2] و في تبر الذهب والفضة وحليهما واوانيهما الزكاة.... سواء كان مباحا اولا (فتح القدير: دوهم ټوک – ۲۲۲ مخ).

[3] نصاب الذهب عشرون مثقالا (درمختار: دوهم ټوک – ۲۹۵ مخ).

هغه سره نه سپین زر وي، نه نغدي پیسې وي او نه د تجارت مال او یا بل د زکوة قابل شی وي نو تر اوو تولو یا شلو مثقالو کمو سرو زرو کې زکوة واجب نه دئ[۱].

**که تر نصاب کم سره زر وه او نور قابل زکاة مال وو:**

که د چا سره تر نصاب کم سره زر، سپین زر، نغدي پیسې یا بل د زکوة قابل شی ورسره وي او قیمت ئې د سپینو زرو نصاب ته رسیږي نو په دې صورت کې پر مجموعي قیمت زکوة واجب دئ په هرو څلویښتو حصو کې څلویښتمه حصه زکوة ادا کول لازمي دي او که د ټولو شیانو مجموعي قیمت د دوپنځوس نیمو تولو سپینو زرو د قیمت سره برابر نه وي نو زکوة واجب نه دئ[۲].

**که د نصاب برابر یا زیات سره زر وه نو په هر صورت کې ستره:**

سره زر چې نصاب ته رسیدلي وي یا زیات وي زکوة ورکول ئې لازمي دي که تجارت په وکړي زیات سي او که زیات نه سي ځکه چې الله تعالی سره زر د (ثمن) یعني سکې په ډول پیدا کړي دي او د کاروبار لپاره ئې پیدا کړي دي نو که د یو چا سره زر وي او هغه کاروبار نه په کوي یا ئې داغسي ایښي وي نو د دغه سړي خپله غلطي ده شریعت ئې ذمه دار نه

---

[۱] یجب في مائتي درهم وعشرین مثقالا ربع العشر ... قید بالنصاب لان مادونه لازکاة فیه (البحرالرائق: دوهم ټوک – ۳۹۳مخ).

[۲] وقیمة العرض تضم الی الثمنین والذهب الی الفضة قیمة..... فلو ضم حتی یؤدي کله من الذهب او الفضة فلا باس به عندنا ولکن یجب ان یکون التقویم بما هو انفع للفقراء ... (درمختار مع ردالمحتار: دوهم ټوک – ۳۰۳ مخ).

دئ[۱].

**که د سرو زرو نصاب دوهم کال بیا پوره وو:**

که د چا سره اووه نیمي تولې سره زر وه او د کال تر پوره کېدو وروسته په نغدو پیسو کې زکوة ادا کړي او سره زر پاته سوه دوهم کال هم باندي تېر سو نو بیا زکوة واجب دئ ځکه چي د سرو زور نصاب دوهم کال هم پوره دئ[۲].

**که د سرو زرو څخه یوه ټوټه په زکات کي ور کړي:**

یو چا د سرو زرو یوه ټوټه په زکوة کي ورکړه او پاته زر تر نصاب کم سول او د دغه سړي سره بل داسي شی هم نه وو چي په هغه کي دي زکوة فرض وي نو په دې صورت کي سره زر تر نصاب کم دي زکوة پکښي واجب نه دئ[۳].

**که د سرو زرو سره نور شیان ګډ وه:**

که خالص سره زر نه وي بلکي یو څه نور شیان ورسره ګډ وي نو جزء غالب ته اعتبار دئ که سره زر غالب وه نو سره زر دي او زکوة پکښي فرض دئ او که نور شیان زیات وه نو زکوة پکښي فرض نه دئ البته که د تجارت لپاره ئې ایښي وه نو بیا د تجارت د سامان حکم لري چي زکوة

---

[۱] و اللازم في مضروب کل منهما ومعموله و لو تبرا او حلیا مطلقا مباح الاستعمال اولا ولو للتجمل والنفقة لانهما خلقا اثمانا فیزکیهما کیف کانا .... ربع عشر... (درمختار: دوهم ټوک – ۲۹۷ مخ).

[۲] تجب ... في کل عشرین مثقال ذهب نصف مثقال مضروبا کان او لم یکن مصوغاً او غیر مصوغ حلیا کان للرجال او للنساء (هندیه: اول ټوک –۱۷۸ مخ)، فمنها حولان الحول علی المال (هندیه: اول ټوک – ۱۷۵ مخ).

[۳] ومنها کون المال نصابا فلا تجب في اقل منه (هندیه: اول ټوک – ۱۷۲ مخ).

پکښې واجب دی[1].

**د سرو او سپينو زرو اهميت:**

سره زر او سپين زر دواړه قيمتي او نفيس شيان دي الله تعالی دغه دواړه شيان د انسانانو لپاره دومره مفيد ګرځولي دي چې د انسانيت د شروع څخه دغه دوه شيان په انساني معاشره کې د نغدو پيسو او د شيانو د قيمت په ډول استعماليږي ځکه نو شريعت دغه دواړه معدني شيان فطرتاً زيات دولت بللي دي او زکوة پکښې فرض دی او دا فرق نه لري که دغه سره او سپين زر د نغدو په شکل کې وي او که په بل شکل کې وي خو په هر صورت کې که نصاب ته ورسيږي نو کلنی زکوة پکښې فرض دئ[2].

**اسلام دغه معيار برقراره ساتلی دئ:**

انسان چې هر چيري اوسيږي سره او سپين زر ئې د معاملاتو او کاروبار لپاره معيار ګرځولي وي او د دنيا د ټولو شيانو اندازه او قيمت په سرو او سپينو زرو معلوميږي او د شيانو په تبادله کې دواړو ته بنيادي حيثيت حاصل دئ ځکه نو اسلام دغه معيار بر قرار ساتلی دئ[3].

**د سرو او سپينو زرو په نصاب کې تفاوت ولې؟**

د سپينو او سرو زرو په قيمت کې نن سبا ډېر فرق دئ نو په دې صورت کې د دواړو په نصاب کې څه نسبت دئ؟

---

[1] وغالب الفضة والذهب فضة وذهب وماغلب غشه منهما يقوم كالعروض ويشترط فيه النية قوله ويشترط فيه النية اي تعتبر قيمته ان نوى فيه التجارة (درمختار مع ردالمحتار: دوهم ټوک – ۳۰۰ مخ).

[2] زکوة کے مسائل کا انسائیکلوپیڈیا: ۲۷۷ مخ).

[3] و في الهداية: كل دينار عشرة دراهم في الشرع قال في الفتح اي يقوم في الشرع بعشرة كذا كان في الابتداء (ردالمحتار: دوهم ټوک - ۲۹۹ مخ).

**جواب**: د نبي کريم ﷺ په زمانه کي او تر هغه وروسته تر يو څه زمانې پوري د سپينو او سرو زرو په قيمت کي تقريباً دومره فرق وو څومره چي د دوی په نصاب کي فرق دئ په هغه زمانه کي د يوه دينار قيمت د لسو درهمو سپينو زرو د قيمت سره برابر وو مگر تر هغې زمانې وروسته د نرخو په زياتوب او کمبود سره د سروزرو قيمتونه پر لوړ سو او د سپينو زرو قيمت پر خپل ځای پاته سو ځکه نو دومره زيات فرق د سپينو او سرو زرو تر منځ ليدل کيږي که نه نو په شريعت کي دومره فرق نه لري د اوو تولو سرو زرو او د دوپنځوس نيمو تولو سپينو زرو قيمت سره برابر وو مگر هو دا خبره هم ضروري ده چي د اسلام حکم تر قيامت پوري داسي پاته دئ لکه څنگه چي د نبي کريم ﷺ په زمانه کي پاته وو او په انسانيت کي هيڅوک په دې حکم کي تر قيامته پوري تبديلي نه سي راوستلای[۱].

**که نصابونه متعدد وي نو....:**

که د چا په ملکيت کي د سرو زرو نصاب وو، د سپينو زرو نصاب وو، د نغدو پيسو يا د تجارت د مال زکوة وو نو د هر نصاب به جلاجلا حساب وکړي او زکوة به ئې ادا کړي[۲].

**نغدي پيسې**:

که چيري نغدي پيسې د دوپنځوس نيمو تولو سپينو زرو د قيمت سره برابري يا زياتي وې نو د کال تر تېرېدلو وروسته په هرو څلوېښتو حصو

---

[۱] زکوة کے مسائل کا انسائیکلوپیڈیا: ۲٦۸ مخ.

[۲] فلو كان كل منهما نصابا تاما بدون زيادة لايجب الضم بل ينبغي ان يؤدي من كل واحد زكاته (ردالمحتار: دوهم ټوک - ۳۰۳ مخ).

کي څلوېښتمه حصه زکوة ځني ورکول لازم دي[۱].

**په مرهونه (ګرو سوو) زرو کي زکوة:**

که د يو چا سره د ګرو زر موجود وي تر يو کال هم زيات وخت تېر سو نو زکوة ئې نه پر راهن دئ او نه پر مرتهن او که زر بيرته و مالک ته ورکړي نو بيا هم د ګرو د تېرو سوو ورځو زکوة پر مالک لازم نه دئ[۲].

**که پر سپينو زرو د سرو زرو اوبه تېري سوي وي يا ډبري پکښي کار سوي وي:**

سپين زر د سرو زرو د اوبو په تېريدلو سره سره زر نه ګرځي او هغه اوبه د سپينو زرو څخه جلا کېدلای نه سي ځکه نو کالعدم دي زکوة ئې د سپينو زرو دئ او که د سرو زرو ډبري په سپينو زرو کي کار سوي وي نو زکوة ئې د سرو زرو په حساب دئ خو وزن ئې په زرګر باندي معلومول ضروري دي[۳].

**په کرنسي (کاغذي نوټ) سره زکوة ادا کول:**

نوټ په خپل اصل کي حواله او سند دئ مال نه دئ مګر په اوسني دور کي روپۍ نېستي ده او ټول کاروبار په نوټ سره کېږي او د روپۍ قائم مقام دئ بلکي نوټ تر روپۍ ډېر قدر لري ځکه نو د نوټ په ذريعه باندي

---

[۱] فتاوی رحيميه: ۸ -۷ -ټوکونه -مخ ۱۵۲.

[۲] ولا اي لايجب الزكوة في مرهون بعد قبضه اي لا على المرتهن لعدم ملك الرقبة ولا على الراهن لعدم اليد واذا استرده الراهن لايزكي عن السنين الماضية (درمختار مع ردالمحتار: دوهم ټوک - ۲۶۳ مخ).

[۳] وان لم ينوها فان كانت بحيث يتخلص منها فضة تبلغ نصابا وحدها او لا تبلغ لكن عنده مايضمه اليها.. وان لم يخلص فلا شئ عليه لان الفضة هلكت فيه ... (فتح القدير: ص ۲۲۰، ج۲). و الا يعتبر قدر ما فيها من الذهب و الفضة وزناً به لان كل واحد منهما يخلص بالاذابة (رد المحتار: دوهم ټوک - ۳۰۲ مخ).

زکوة ادا کېږي[1].

د روپۍ او سکې فرق یوازي دا دئ چي په روپۍ کي به سپین زر استعمالېدل او غالب به هم وه او زکوة ئې په وزن سره ادا کېدی خو د سکې زکوة په تللو نه ادا کېږي بلکي په قیمت سره ادا کېږي[2].

**د زکوة پیسې په حواله یا بله ذریعه لېږل:**

د زکوة پیسې په حواله یا بله ذریعه استول کېدلای سي ځکه چي مجبوري ده او د زکوة په ادا کولو کي هیڅ اثر هم نه راولي البته د حوالې د فیس په ورکولو کي د زکوة او سرسایې پیسې استعمالېدلای نه سي[3].

**د څو کلونو د زرو د زکوة ادا کولو طریقه:**

که د یو چا سره نصاب ته رسېدلي سپین زر یا سره زر موجود وه مګر د څو کلونو زکوة ئې ادا کړی نه وو نو پر دغه سړي د تېرو کلونو زکوة واجب دئ د هر کال د زرو قیمت به معلوم کړي او زکوة به ورکړي[4].

**پر نذر سوو پیسو باندي زکوة:**

که یو چا د خپل مال دریمه حصه د الله لپاره نذر کړې وي او مسکینانو ته ئې ورکوي که دغه سړی په ژبه د نذر الفاظ ویلي وي نو دغه نذر واجب سو حکم ئې دا دئ چي زکوة پکښې فرض دئ مګر د جلا

---

[1] ان الزكاة تجب في الغطارفة اذا كانت مائتين لانها اليوم من دراهم الناس وان لم تكن دراهم الناس في الزمن الاول و انما يعتبر في كل زمان عادة اهل ذلک الزمان الاترى ان مقدار المائتين لوجوب الزكاة من الفضة انما تعتبر بوزن سبعة (البحر الرائق: دوهم ټوک - ۳۹۷ مخ).

[2] فرق صرف اتنا ہے که پهلے روپیه میں چاندی غالب هونے کی وجه سے وجوباً واداءً وزن کا اعتبار هوگا اور نئے روپیه مین قیمت کا اعتبار هوگا (فتاوی محمودیه: نهم ټوک - ۳۹۵ مخ).

[3] فتاوی رحیمیه: ۷ – ۸ ټوکونه – ۱۴۶ مخ.

[4] فتاوی رحیمیه: ۷ – ۸ ټوکونه – ۱۴۷ مخ.

پیسو څخه زکوة ادا کول ضروري نه دي بلکي د دغو پیسو څلوېښتمه حصه به په نیت د زکوة ورکړي او نذر ئې د زکوة په اندازه ساقط سو پاته پیسې به د نذر په نیت خیرات کړي[۱].

## که یوازي سره زر تر نصاب کم وي مګر قیمت ... :

که د یو چا سره یوازي او یوازي سره زر وي بل څه ورسره نه وي که څه هم قیمت ئې د سپینو زرو د نصاب سره برابر وي بیا هم زکوة پکښي واجب نه دئ[۲].

## د خپل مال هره میاشت زکوة ورکول:

که یو څوک د خپلو پیسو یا مال هره میاشت زکوة ورکوي نو زکوة ورکول ئې صحیح دی او که یو څوک د یوه کال یا ډېرو کلونو زکوة تر مخه ورکوي هم صحیح دئ[۳].

## د ډاکخانې یا بینک د جمع سوو پیسو زکوة:

که یو چا په ډاکخانه یا بینک کي پیسې جمع کړي وي او څو کلونه باندي تېر سوي وه چي کله پیسې راوباسي د تېرو سوو کلونو زکوة به هم ورکوي[۴].

[۱] احسن الفتاوی: څلورم ټوک – ۲۷۶ مخ.

[۲] فاما اذا کان له ذهب مفرد فلا شئ فیه حتی یبلغ عشرین مثقالا فاذا بلغ عشرین مثقالا ففیه نصف مثقال (بدائع: دوهم ټوک - ۱۰۵ مخ).

[۳] و ان قدم الزکاة علی الحول وهو مالک للنصاب جاز.... ویجوز التعجیل لاکثر من سنة (هدایه: دوهم ټوک - ۳۴ مخ).

[۴] و لو کان الدین علی مقر ملئ..... فوصل الی ملکه لزم زکاة ما مضی (درمختار: دوهم ټوک - ۲٦٦ مخ).

## د قسطو په پیسو کي زکوة:

که یو څوک یو سرای مثلاً په قسطو د میاشتي په لس زره خرڅ کړي نو د دغه پیسو چي څومره حصه وصول کېږي کال ئې هم شروع کېږي د کال تر تېرېدو وروسته زکوة پکښي واجب دئ او په ځینو روایاتو کي داسي دي چي څومره د پیسو وصولي کېږي هغومره اندازه زکوة لازمېږي او ظاهر روایت او مفتی به قول همدغه دئ البته اول قول هم صحیح دئ[1].

## په مشترک کاروبار کي زکوة:

که په مشترک کاروبار کي د هر شریک سرمایه او ګټه نصاب ته رسېدل نو زکوة پر هر شریک جلا جلا واجب دئ او که یو شریک زکوة نه ورکوي نو هغه خپله ګناهکار دئ عذاب او ثواب د هغه پر غاړه دئ خو دا بل شریک چي زکوة باسي غاړي ئې خلاصي دي او کاروبار ئې حلال دئ[2].

## د زکوة پیسې په کاروبار کي لګول:

که مدرسه د پیسو فنډ ولري او اراکین وغواړي چي د زکوة دغه فنډ په کاروبار کي ولګوي که چیري ګټه تقریباً یقیني وي نو د زکوة د فنډ

---

[1] فتجب زکاتها اذا تم نصابا وحال الحول لکن لافوراً بل عند قبض اربعین درهما من الدین القوي کقرض و بدل مال تجارة ... والحاصل ان مبني الاختلاف في الدین المتوسط علی انه هل یکون مال زکاة بعد القبض او قبله فعلی الاول لابد من مضی حول بعد قبض النصاب وعلی الثاني ابتداء الحول من وقت البیع (درمختار مع ردالمحتار: دوهم ټوک - ۳۰٦ مخ).

[2] فان کان نصیب کل واحد منهما یبلغ نصابا وجبت الزکاة والا فلا سواء کانت شرکتهما عنانا او مفاوضة او شرکة ملک بالارث او غیره من اسباب الملک (هندیه: اول ټوک – ۱۸۱ مخ). لیکن اگر وه ادا نه کریں تو اس کا عذاب و ثواب ان پر هے آپ اپنی زکوة نکالنے کے بعد بري الذمه هیں اور آپ کا کاروبار حلال هے (فتاوی عثماني: دوهم ټوک – ۵۵ مخ).

بالابود پیسې په کاروبار کي لګولای سي مګر دوې خبري ضروري دي:

**اول**: که تاوان وسو نو په کاروبار کي لګوونکی کس به تاوان د خپله جیبه پوره کوي.

**دوهم**: د زکوة دغه پیسې تر ډېري زمانې پوري په کاروبار کي لګول صحیح نه دي او ژر تر ژره خپلو مستحقینو ته رسول ضروري دي[1].

**د زکوة پیسې په قرض ورکول**:

که یو څوک د زکوة پیسې په قرض باندي بل چا ته ورکړي نو جائز نه دي او صحیح طریقه نه ده پرېښودل ئې ضروري دي ځکه چي د زکوة د اداکولو لپاره شرط دا دئ چي د زکوة پیسې مستحق ته بې له عوضه په ملکیت کي ورکول سي خو د قرض په صورت کي تملیک نه راځي[2].

**که یو چا د زکوة پیسې په پور ورکړي خو هغه بیر ته راوړې**:

که یو فقیر سړي پیسې په پور وغوښتلې نو پور ورکوونکي د زکوة په نیت پور ورکړی یو څه وخت وروسته بیرته هغه پور راوړی خو ورکوونکي ورته وویل چي دغه هدیه ده خو پوروړي د اخیستلو څخه انکار وکړ نو اوس به دغه پیسې پور ورکوونکي د پوروړي په اجازه و بل د زکوة مستحق نفر ته ورکړي[3].

---

[1] فتاوی عثماني: دوهم ټوک – ٦٩ مخ.

[2] هي تملیک خرج الا باحة فلو اطعم یتیما ناویا الزکوة لایجزیه الا اذا دفع الیه المطعوم کما لو کساه (درمختار: ص٢٥٦، ج٢).

[3] فتاوی رحیمیه: ٧ – ٨ ټوکونه – ١٨٩ مخ. الجواب: اگر وه شخص رقم نه لے اور واپس کردے تو اس کي اجازت سے کسی اور مستحق زکوة کو وه رقم دے دي جائے.

**په اوس کي د سرو زرو نصاب معتبر دئ که د سپينو:**

موږ چي خپل تحقيق مکمل کړی نو و دې نتيجې ته رسېدلي يو چي په اوسنيو حالاتو او شرائطو کي بيا هم د سپينو زرو نصاب معتبر دئ او په دې باره کي زموږ د قدرمنو استاذانو فتواوي مطالعه کړئ:



بسم اللہ الرحمن الرحیم

کیا فرماتے ہیں علماء دین اس مسئلے کے بارے میں؟

آج کے شرائط اور حالات میں کونسا نصاب معتبر ہے سونے کا یا چاندی کا
اگر چاندی کا نصاب معتبر ہے تو بہت سارے مشکلات سامنے آجاتے ہیں
مثلاً اگر ایک بندے کے پاس تقریباً دس ہزار روپے موجود ہوں اور حاجت
اصلیہ سے زائد بھی ہوں تو کیا اس شخص پر زکوۃ دینا فرض ہے حالانکہ
بہت کم ایسے افراد موجود ہیں جنکے پاس (۱۰۰۰۰) ہزار روپے موجود نہ ہوں
اور اگر سونے کا نصاب معتبر ہے تب بھی مشکلات ہیں مثلاً ایک بندے کے
پاس (۴۰۰۰۰) یا (۵۰۰۰۰) ہزار روپے ہیں جو سونے کے نصاب سے کم
اور چاندی کے نصاب سے زیادہ ہیں تو کیا اس شخص پر زکوۃ دینا فرض ہے
اور کیا اس شخص کا زکوۃ لینا صحیح ہے خلاصہ یہ کہ آج کل کے حالات
اور شرائط اور مشکلات کو مدنظر رکھتے ہوئے کونسا نصاب معتبر ہے
سونے کا یا چاندی کا؟

المستفتی: جان [illegible]

الجواب حامداً ومصلیاً

موجودہ حالات میں سونے اور چاندی کی قیمتوں کے درمیان بہت زیادہ فرق کی وجہ سے وجوبِ زکوٰۃ اور وجوبِ قربانی کے لیے چاندی کے نصاب کے معیار ہونے کا مسئلہ کچھ عرصہ سے علماءِ کرام کے ہاں زیرِ غور ہے، اور اس بارے میں کچھ مضامین بھی لکھے جا چکے ہیں، تاہم ہماری تحقیق کے مطابق اب تک وجوبِ زکوٰۃ کے لیے چاندی کا نصاب ہی معیار ہے۔ مزید تفصیل کے لیے منسلکہ فتویٰ ملاحظہ فرمائیں۔ واللہ سبحانہ وتعالیٰ أعلم بالصواب۔

محمد احمد رضا

دارالافتاء دارالعلوم کراچی ۱۴

۲۱/۲/۱۴۲۸ھ

الجواب صحیح

محمد عبدالمنان عفی عنہ

۲۱/۲/۱۴۲۸ھ



الجواب صحیح

۲۱/۲/۲۸ھ



باغ کي عشر واجب نه دی[۱].

**که تخم د بزګر او سرخېل دواړو له طرفه وي:**

که تخم په ګډه وو یعني د بزګر او سرخېل دواړو له طرفه وو نو داسي معامله فاسده ده البته عشر پر هر یوه باندي د خپلي حصې لازم دی[۲].

---

[۱]: اگر مکان رہایشی ہی ہے مگر اس کے صحن میں باغ لگا لیا تو اس پر عشر یا خراج واجب نہیں ہے.
(مسائل رفعت قاسمي: ج۳- ص۱۶۳)

[۲]: پس مزارعة کے حصہ میں جتنی پیدار آئے اس کا عشر اس کے ذمہ ھے اور مالک کے حصہ میں جتنی جائے اس کا عشر اس پر لازم ہے۔ آپ کے مسائل اور ان کا حل: (دریم ټوک۴۱۱-مخ)

# اووم باب

# د زکوة مصارف

## د زکوة تر ټولو ښه مصرف (مستحق):

د زکوة تر ټولو ښه حقداره خپل ديندارہ قريبان دي چي د زکوة مستحق وي او که دوی په دين کي مشغول وي نو هم د قرابت او هم د دين رعايت پکښي وسو[۱].

## جايداد والا ته زکوة ورکول:

که يو سړی دومره جايداد غير منقوله (مځکه، دوکان، وغيره) ولري چي قيمت ئې نصاب ته رسيږي خو د هغه حصول د دغه سړي ټوله ضروري اخراجات نه سي پوره کولای نو په دې صورت کي دغه سړی زکوة اخيستلای سي ځکه چي د مځکي قيمت د غنا سبب نه دئ[۲].

## د غوا يا غوايي مالک ته زکوة ورکول:

که يو سړی د ضروورياتو څخه زياتي غواوي يا غوايان يا نور حيوانات درلودل او قيمت ئې دوپنځوس نيمو تولو سپينو زرو ته رسيدی نو دغه سړی غني دئ او زکوة اخيستل ورته جائز نه دي[۳].

## غني سړي زکوة قبض کړي او فقيرانو ته يې ورکړي:

که يو سړی غني وي نو زکوة اخيستل ورته روا نه دي چي دی ئې

---

[۱] قيد بالولاد لجوازه لبقية الاقارب كالاخوة والاعمام والاخوال الفقراء بل هو اولى لانه صلة وصدقة وفي الظهيرية ويبدا في الصدقات بالارقاب ثم الموالى ثم الجيران (ردالمحتار: دوهم ټوک – ۳۴۶ مخ).

[۲] و لوكان له ضيعة قيمتها آلاف ولايحصل منه ما يكفي له ولعياله اختلف فيه قال محمد ابن مقاتل يجوز صرف الزكوة اليه (بزازيه: څلورم ټوک – ۸۵ مخ).

[۳] و ببقرة واحدة غني و بثلاثة ثيران اذا ساوى احدها مائتي درهم صاحب نصاب (هنديه: پنځم ټوک – ۲۹۳ مخ).

قبض کړي فقیرانو ته ئې بیا ورکړي البته که د یو چا زکوة وکالة قبض کړي فقیرانو ته ئې ورکړي بیا صحیح دي[1].

**اصولو او فروعو ته زکوة ورکول:**

و خپلو اصولو (پلار، نیکه او نورو، ... مور، انا او نورو ...) ته زکوة ورکول جائز نه دي او خپلو فروعو (زوی، لمسي او داسي نورو ... لور، لمسۍ او داسي نورو ...) ته زکوة ورکول هم جائز نه دي که څه هم په کاروبار کي سره جلا وي او یا په وېش سره جلا وي او یا غریبان وي[2].

**د خاوند او ښځي یو بل ته زکوة ورکول:**

خاوند ښځي ته او نه ښځه خاوند ته زکوة ورکولای سي ځکه چي د دوی ګټي سره ګډي دي[3].

**خور او ورور ته زکوة ورکول:**

د اصولو او فروعو، کوروالا او خاوند څخه ماسوا نورو ټولو قریبانو لکه ورور، خور، ... ته زکوة ورکول روا دي او مستحب کار هم دئ خو په دې شرط چي صاحب نصاب به نه وي[4].

**غریب ته د هبې یا پور په نامه زکوة ورکول:**

د زکوة د پیسو د جلاکېدو په وخت کي یا د زکوة د ورکولو په وخت

---

[1] وکذا لو کان عنده من المصاحف وهويحتاج اليه وان کان لایحتاج اليه وهو یساوي مائتي درهم لایجوز صرف الزکوة اليه ولایجوز له اخذها (هندیه: اول ټوک – ۱۸۹ مخ).

[2] ولایدفع المزکي زکاته الی ابیه وجده وان علا ولا الی ولده وولد ولده وان سفل (هدایه: دوهم ټوک – ۷۳ مخ)، هکذا فی فتاوی حقانیه: څلورم ټوک – ۴۹ مخ.

[3] ولا الی امراته للاشتراک في المنافع عادة ولاتدفع المراة الی زوجها عند ابي حنیفة رحمة الله علیه (هدایه: دوهم ټوک – ۷۳ مخ).

[4] وقید بالولاد لجواز لبقیة الاقارب کالاخوة والاعمام والاخوال الفقراء بل هم اولی لانه صلة وصدقة (ردالمحتار: دوهم ټوک – ۳۴۶ مخ).

کي د زکوة نیت کول ضروري دي وروسته که څه هم د پور، هبې او یا بل شي نوم ور واخیستل سي زکوة ئې صحیح کېږي[۱].

**د صاحب نصاب سړي اولادو ته زکوة ورکول:**

د صاحب نصاب سړي غټانو غریبانو اولادو ته زکوة ورکول جائز دي البته کوچنیانو اولادو ته چي بلوغ ته لا نه وي رسېدلي زکوة ورکول جائز نه دي ځکه چي دوی د پلار په غنا سره غنیان بلل کېږي[۲].

**کافر ته زکوة ورکول:**

د زکوة د اداء لپاره اسلام شرط دئ ځکه نو زکوة او نور صدقات واجبه غیر مسلم ته ورکول جائز نه دي[۳].

**نابالغ ته زکوة ورکول:**

د زکوة په مصرف کي بلوغ ضروري نه دئ بلکي قبض کوونکی به دومره عقل او فهم لري چي په اخیستلو او خرڅولو وپوهېږي اوس که نابالغ په اخیستلو او خرڅولو پوهېږي زکوة ورکول پروا نه لري مګر دا چي نابالغ په غریبي او مالداری کي د پلار تابع وي نو که ئې پلار صاحب نصاب وو زکوة ورکول روا نه دي او که صاحب نصاب نه وي بیا زکوة ورکول روا دي البته که کوچنی په راکړه ورکړه نه پوهېدی بیا یې د

---

[۱] ومن اعطی مسکینا دراهم سمها هبة او قرضا ونوی الزکوة فانها تجزیه وهوالاصح (هندیه: اول ټوک – ۱۷۱ مخ).

[۲] و لا الی ولد غني اذا کان صغیرا لانه یعدغنیا بیسار ابیه بخلاف ما اذا کان کبیرا فقیرا لانه لایعد غنیا بیسار ابیه وان کان نفقته علیه (هدایه: دوهم ټوک – ۷۵ مخ).

[۳] و لایجوز ان یدفع الزکوة الی ذمي لقوله علیه السلام لمعاذ خذها من اغنیائهم و ردها في فقرائهم و یدفع الیه ماسوی ذالک من الصدقة (هدایه: دوهم ټوک – ۷۲ مخ).

کوچني سرپرست ته ورکولای سي[۱].

**د ديني مدرسې غني استاذ ته زکوة ورکول:**

د زکوة په تمليک کي د قبض کوونکي فقر شرط دئ او که د مدرسې استاذ فقير نه وو نو زکوة ورکول صحيح نه دي[۲].

**دومره زکوة مستحق ته ورکول چي د نصاب خاوند سي:**

که يو سړی پوروړی وي نو د پور د ادا کولو لپاره د زکوة ټولي پيسې ورکول چي پور ئې په ادا سي جائز دي او يا سړی دومره عيالداره وي چي که د زکوة پيسې باندي تقسيم سي بيا هم کفايت ئې نه په کېږي نو زکوة ورکول جائز دي البته بې له کوم عذره دومره زکوة ورکول چي هغه صاحب نصاب سي مکروه دئ مګر زکوة ئې ادا کېږي[۳].

**غني طالب العلم ته زکوة ورکول:**

که چيري داسي طالب العلم د سفر په حالت کي د نصاب په اندازه مال ونه لري نو زکوة ورکول جائز دي ځکه چي ملکيت يداً اعتبار لري او که ئې په سفر کي د نصاب په اندازه مال درلودی بيا زکوة ورکول جائز نه دي[۴].

---

[۱] ود فع الزکوة الی صبيان آقاربه برسم عيد او الی مبشر او مهدی الباکورة جاز قوله الی صبيان آقاربه اي العقلاء والا فلا يصح الا بدفع الی ولي الصغير (ردالمحتار: دوهم ټوک – ۳۵۶ مخ).

[۲] هذا الفرع مخالف لاطلاقهم الحرمة في الغنی ولم يعتمده احد قلت و هوکذلک والاوجه تقييده بالفقير ... قال للاتفاق علی ان الاصناف کلهم سوی العامل يعطون بشرط الفقر (ردالمحتار: دوهم ټوک – ۳۴۰ مخ).

[۳] وکره اعطاء فقير نصابا او اکثر الا اذا کان المدفوع اليه مديون او کان صاحب عيال بحيث لو فرقه عليهم لايخص کلا او لايفضل بعد دينه نصابا فلا يکره (ردالمحتار: دوهم ټوک – ۳۵۳ مخ).

[۴] ولايجوز دفع الزکاة الی من يملک نصاباً من ای مال کان لان الغني الشرعي مقدر به، وابن السبيل من کان له مال في وطنه وهوفي مکان آخر لا شيئ له فيه (هدايه: دوهم ټوک - ۱۷ – ۷۸ مخونه).

**د زکوة پیسې د یو ښار څخه بل ښار ته وړل:**

د خپل ښار څخه بل ښار ته زکوة وړل په شریعت کې مکروه تنزیهي عمل دئ البته که قریبان په بل ښار کې اوسېدل یا تر خپل ښار هغه بل ښار والا ډېر حاجتمند وه نو په دې صورت کې بیا کراهت نسته[1].

**سیاسي تنظیم یا انجمن ته زکوة ورکول:**

د زکوة او عشر په ادا کولو کې مسلمان فقیر مالک جوړول ضروري دي او په انجمن او تنظیم کې که څه هم مذهبي وي دغه شرائط نسته ځکه نو زکوة ورکول صحیح نه دي[2].

**د زکوة په نیت په مسکین ډوډۍ خوړل:**

که یو څوک د زکوة په نیت په یو غریب ډوډۍ وخوري او دغه ډوډۍ د دغه غریب په ملکیت کې ورکړي نو زکوة ئې صحیح دئ[3].

**وکیل که خپله زکوة استعمال کړي:**

که زکوة ورکوونکی وکیل یو خاص سړي یا خاصي مدرسې ته د زکوة رسولو لپاره ټاکلی وي او بیا ئې خپله استعمال کړي نو زکوة ئې نه ادا کېږي او وکیل ضامن دئ او که ئې وکیل ته مطلق اختیار ورکړی وي چې هر ځای ئې مصرفوي که دغه وکیل خپله مستحق وي او استعمال

---

[1] و کره نقلها الا الی قرابة بل في الظهیریة لاتقبل صدقة الرجل و قرابته محاویج حتی یبدا بهم فیسد حاجتهم او احوج او اصلح او اورع وانفع للمسلمین (ردالمحتار: دوهم ټوک – ۳۵۳ مخ).

[2] هي تملیک المال من فقیر مسلم غیر هاشمي ولامولاه بشرط قطع المنفعة عن الملک من کل وجه لله تعالی (البحرالرائق: دوهم ټوک – ۳۵۲ مخ. فتاوی حقانیه: څلورم ټوک – ۵۹ مخ).

[3] فلو اطعم یتیما ناویا الزکوة لایجزیه الا اذا دفع الیه المطعوم لانه بالدفع الیه بنیة الزکوة یملکه فیصیرا آکلاً من ملکه بخلاف ما اذا اطعمه معه (درمختار مع ردالمحتار: دوهم ټوک – ۲۵۷ مخ).

ئې کړي نو زکوة ادا کېږي او که مستحق نه وو نه ادا کېږي[۱].

**وکیل که خپلو قریبانو ته زکوة ورکړي:**

که چیري وکیل د زکوة د تقسیمولو ذمه دار وي نو خپله ئې د مالک بې له اجازې اخیستلای نه سي او که ئې اصول او فروع یا نور قریبان د زکوة مستحق وي زکوة ورکولای سي[۲].

**مجاهد غني ته زکوة ورکول:**

داسي سړی که په خپل وطن کي مال ولري مګر جهاد ته د تللو په وخت کي مال ورسره نه وي نو زکوة ورکول صحیح او د لا زیات ثواب باعث دئ[۳].

**زوم ته زکوة ورکول:**

که چیري زوم غریب وي او د زکوة مستحق وي زکوة ورکول جائز دي[۴].

**مړور ته زکوة ورکول:**

که چیري مړور د زکوة مستحقه وي نو په زکوة ورکولو کي دوه ثوابه

---

[۱] و للوکیل ان یدفع لولده الفقیر و زوجته لالنفسه الا اذا قال ربها ضعها حیث شئت (درمختار: دوهم ټوک – ۲٦۹ مخ).

[۲] الوکیل باداء الزکوة اذا صرفه الی ولده الکبیر او الصغیر او امراته وهم محاویج جاز ولایمسک لنفسه شیئا (بزازیه: څلورم ټوک – ۸٦ مخ).

[۳] و اما استثناء الغازي فمحمول علی حال حدوث الحاجة وسماه غنیا ... فیجوز ان یعطي من الصدقات ما یستعین به في حاجته التي تحدث له في سفره وهو في مقامه غني بمایملکه لانه غیر محتاج في حال اقامته فیحتاج في حال سفره فیحمل قوله لاتحل الصدقة لغني الا لغاز في سبیل الله ... (بدائع: دوهم ټوک – ۱۵۵ مخ).

[۴] و قید باصله وفرعه لان من سواهم من القرابة یجوزالدفع لهم و هو أولی لما فیه من الصلة مع الصدقة (البحرالرائق: دوهم ټوک ۴۲۵ مخ).

دي يو زکوة ورکول او بل صله رحمي کول[1].

## د مسجد امام ته عشر او زکوة ورکول:

امام ته په مزدورۍ کي زکوة ورکول که په زوره وي که په رضا جائز نه دي او که ئې قوم ورکړي زکوة ئې نه صحيح کېږي او که امام غريب وي او د نصاب مالک نه وي بيا د پېروزيني په خاطر پروا نه لري خو د امامت په عوض کي به نه وي[2].

## د عياشۍ په وجه که يو څوک پوروړی سي نو ....:

که يو څوک داسي عياش وي چي د ګناه يا فسق کولو په خاطر پوروړی سوی وي که څه هم ده ته زکوة ورکول روا دي مګر د ده سره په بې ديني کولو کي مرسته ده ځکه نو ښه خبره دا ده چي نېک او صالح نفر ته زکوة ورکول سي[3].

## د زکوة ورکولو په وخت کي پر ظاهري حالت اکتفاء کول:

د زکوة ورکولو په وخت کي که د سړي غالب ګمان دا وو چي دغه سړی د زکوة مستحق دئ او زکوة ئې ورکړ نو زکوة ئې صحيح دئ که څه هم وروسته معلومه سي چي دغه سړی غني دئ[4].

---

[1] وقيد باصله.... (البحرالرائق: دوهم ټوک – ۴۲۵ مخ).

[2] و في الملتقط من الاجارة المعلم اذا اعطي خليفته شيئا ناويا الزكوة فان كان بحيث يعمل له لولم يعطه يصح عنها والا فلا (الاشباه والنظائر: ۱۶۹مخ).

[3] التصدق على الفقير العالم افضل من التصدق على الجاهل (هنديه: اول ټوک – ۱۸۷ مخ).

[4] اذا شک وتحرى فوقع في اكبر رايه انه محل الصدقة فدفع اليه او سأل منه فدفع او راه في صف الفقراء فدفع فان ظهر انه محل الصدقة جاز بالاجماع وكذا ان لم يظهر حاله عنده و اما اذا ظهر انه غنى او هاشمي ... فانه يجوز و تسقط عنه الزكوة في قول ابي حنيفة ومحمد رحمهما الله تعالى (هنديه: اول ټوک – ۱۹۰ مخ).

**د زکوة په پیسو باندي دیني کتابونه چاپول:**

که یو غریب سړی د بل چا څخه پیسې واخلي او کتابونه په چاپ کړي نو د زکوة ورکوونکو په اجازه د زکوة په پیسو کتابونه چاپولای سي او هم ئې تقسیمولای سي[1].

**مدرسو یا خانقاه ته زکوة ورکول:**

د زکوة د صحت لپاره ضروري دي چي د پیسو مالک یو فقیر او مسکین وګرځوي که په مدرسو او خانقاه کي د زکوة پیسې یا ډوډۍ مستحقینو ته په ملکیت کي ورکول کېږي زکوة ادا کېږي[2].

**د زکوة په پیسو د مشترکي ګټي لپاره سامان رانیول:**

په زکوة او واجبو صدقاتو کي تملیک بلا عوض شرط دئ او د مشترکي ګټي لپاره سامان رانیول د چا شخصي ملکیت نه وي نو په داسي شیانو کي زکوة مصرفول روا نه دي[3].

**ایا سني و شیعه ته زکوة ورکولای سي؟**

د زکوة د مصرف لپاره اسلام شرط دئ هغه شیعه ګان چي عقائد ئې باطل وي د اسلام څخه خارج دي او زکوة ورکول صحیح نه دي[4].

**د زکوة د حیلې حکم:**

په مدرسو او مسجدو کي عموماً داسي حیله (چم) کېږي چي د زکوة ټولي پیسې په یوه مستحق قبض کړي بیا ئې پر تعمیر او نورو ځایو

---

[1] و یشترط ان یکون الصرف تملیکا لا اباحة فلا یصرف الی بناء نحو المسجد ولا الی کفن میت وقضاء دینه (درمختار: دریم ټوک – ۳۴۴ مخ).

[2] منها الفقیر وهو من له ادنی شئ وهو مادون النصاب او قدر نصاب (هندیه: اول ټوک – ۱۸۷ مخ).

[3] و یشترط ان یکون الصرف تملیکا... (ردالمحتار: دوهم ټوک - ۳۴۴ مخ).

[4] وهي تملیک جزء مال عینه الشارع من مسلم فقیر (درمختار: دوهم ټوک – ۲۵۶ مخ).

باندي مصرفوي اوس نو دا خبره ضروري ده چي په زکوة کي تمليک شرط دئ او په تمليک کي دا ضروري ده چي د زکوة قبض کوونکی نفر به صاحب نصاب نه وي، که د مدرسې مهتمم يا ناظم يا د مسجد متولي صاحب نصاب نه وي، قبض ئې جائز او صحيح دئ او د مدرسې يا مسجد په هر کار کي ئې استعمالولای سي مګر ښه صورت ئې دا دئ چي د دغي حيلې پر ځای د زکوة پيسې پر طالبانو تقسيم کړي تر څو په ښه طريقه سره زکوة ادا سي[1].

**پور په زکوة کي معافول**:

که د احمد پر خالد پور باندي وي او احمد ئې په زکوة کي ورمعاف کړي زکوة نه ادا کېږي او که احمد نوري پيسې خالد ته په زکوة کي ورکړي او خالد ئې بيرته په پور کي و احمد ته ورکړي پروا نه لري[2].

**د ديني مدرسو مهتممانو ته زکوة ورکول**:

په اوسني وخت کي د مدرسو د مهتممانو حيثيت د عاملينو دئ چي کله يو څوک دوی ته زکوة ورکړي زکوة ئې فوراً ادا سو خو پر مهتمم لازمه ده چي زکوة په خپل ذاتي مصارفو کي خرڅ نه کړي بلکي پر طالبانو ئې مصرف کړي او د غير ضروري مصارفو څخه به احتياط

[1] والحيلة في الجواز في هذه الاربعة ان يتصدق بمقدار زکوته على فقير ثم يامره بعد ذلک بالصرف الى هذه الوجوه فيکون لصاحب المال ثواب الزکوة وللفقير ثواب هذه القرب (البحرالرائق: دوهم ټوک – ۴۲۴ مخ - فتاوی حقانيه: څلورم ټوک – ۷۲ مخ).

[2] ولو وهب دينه من فقير و نوی زکوة دين اخر له على رجل اخر او نوی زکوة عين له لم يجز کذا في الکافي (هنديه: اول ټوک – ۱۷۱ مخ).

کوي[۱].

## غني عالم ته زکوة ورکول :

زکوة يوازي د فقيرانو او مسکينانو حق دئ کوم چي الله تعالی پر غنيانو مقرر کړی دئ مګر دا چي په ځينو سيمو کي غنيان مولوي صاحبان يا نور عامه خلګ زکوة اخلي نو دا زکوة نه دوی ته اخيستل روا دي او نه د خلګو زکات ادا کېږي[۲].

## نشيانو ته زکوة ورکول :

زکوة هر فقير او مسکين ته په ورکولو سره ادا کېږي مګر زکوة ورکوونکی دي د دې خبري خيال وساتي چي د ګناهکار سړي سره چي د ګناه عادت وي د ګناه په کارو کي مرسته ونه کړي ځکه نو و چرسيانو، هيروئينيانو، خماربازانو، تارياکيانو او داسي نورو ته زکوة ورکول مناسب نه دي[۳].

## په ديني مدرسو کي د زکوة تصريح ضروري ده :

ديني مدرسو ته د زکوة ورکولو په وخت کي د زکوة تصريح ضروري ده تر څو مدرسي والا زکوة په خپل مصرف کي استعمال کړي صرف نيت

---

[۱] عن علي و ابن عباس رضي الله عنهما قالا : اذا اعطی الرجل الصدقة صنفا واحدا من الاصناف الثمانية اجزاه (احکام القرآن للجصاص: دريم ټوک – ۲۰۳ مخ).

[۲] علماء اغنياء را زکوة ګرفتن بالاتفاق حرام است (مجموعة الفتاوی: ۱–۲ ټوکونه – ۲۳۷ مخ).

[۳] هي تمليک خرج الاباحة ... من مسلم فقير غير هاشمي ولامولاه (درمختار: دوهم ټوک – ۲۵٦ مخ). وَلَا تَعَاوَنُواْ عَلَى ٱلۡإِثۡمِ وَٱلۡعُدۡوَٰنِ (سورة المائده: ايت۲)

کافي نه دئ[1].

**د کور یا دوکان مزدور ته زکوة ورکول:**

فقیر مزدور ته زکوة او خیرات دواړه ورکول صحیح دي او د هغه لپاره هم اخیستل روا دي مګر د مزدورۍ په عوض کي که زکوة ورکول سي نه ادا کېږي[2].

**دیني مدرسو ته د حکومت له طرفه زکوة ورکول:**

کله کله حکومت د بینکو د پیسو څخه مدرسو ته زکوة ورکوي دغه د زکوة پیسې که طالبان مصرف کړي استعمالول ئې ورته روا دي که څه هم په دغه پیسو کي د سود د پیسو یو څه وهم وي[3].

**کونډې ته زکوة ورکول:**

که چیري کونډه نصاب ته رسېدلي پیسې یا نور څه نه لري نو زکوة ورکول صحیح دي[4].

**فقیران چي په بازار کي ګرځي زکوة ورکول:**

په ښارو او کلیو کي چي کوم فقیران ګرځي نه لمونځ کوي نه روژه نیسي او داسي نور نو هغوی ته زکوة ورکول صحیح دي او که چیري ئې

---

[1] ولایخرج عن العهدة بالعزل بل بالاداء للفقراء ... فلو ضاعت لاتسقط عنه الزکوة (درمختار مع ردالمحتار: دوهم ټوک – ٢٧٠ مخ).

[2] و یجوز دفعها الی من یملک اقل من النصاب وان کان صحیحا مکتسبا کذا في الزاهدي (هندیه: اول ټوک – ١٨٩ مخ).

[3] ولو اخرج زکوة المال الحلال من مال حرام ذکر في الوهبانیة انه یجزي عند البعض ... ولو نوی في المال الخبیث الذي وجبت صدقته ان یقع عن الزکوة وقع عنها (ردالمحتار: دوهم ټوک – ٢٩٢ مخ - و في فتاوی حقانیه: څلورم ټوک – ٨١ مخ).

[4] و یجوز دفعها الی من یملک اقل من النصاب ... (هندیه: اول ټوک – ١٨٩ مخ).

نصاب درلودی بیا زکوة ورکول جائز نه دي[1].

## که یو څوک زکوة واخلي بیا ئې خپل پلار یا زوی ته ورکړي:

که یو څوک په خپله د زکوة مستحق وي او زکوة واخلي نو خپله ئې هم استعمالولای سي او خپل پلار، زوی و غیره ته ئې هم ورکولای سي[2].

## په قریبانو کي اول چا ته زکوة ورکول:

په زکوة، سرسایه او داسي نورو کي اول حق د ورور او خور دئ بیا د هغوی د اولادو دئ، بیا د اکاګانو او عمه ګانه دئ، بیا د هغوی د اولادو حق دئ، بیا د ماماګانو او خاله ګانو او د هغوی د اولادو دئ[3].

## په زکوة باندي طبي کومک کول:

که په یو ځای کي مسلمانانو ته تکلیف رسېدلی وي مثلاً زلزلې، باران یا طوفان خوړ کړي وي نو دوی ته که د زکوة پیسې یا دواء تملیکاً ورکول سي زکوة صحیح کېږي[4].

## تبلیغي جماعت ته زکوة ورکول:

د زکوة پیسې تبلیغي جماعت ته که ئې مستحق وي ورکول جائز دي مګر یوازي تبلیغي جماعت صحیح مصرف بلل ښه نه دئ[5].

---

[1] و لایجوز دفع الزکاة الی من یملک نصابا ... (هندیه: اول ټوک – ۱۸۹ مخ).

[2] قال الطیبي اذا تصدق علی المحتاج بشئ ملکه فله ان یهدي به الی غیره وهو معنی قول ابن الملک فیحل التصدق علی من حرم علیه بطریق الهدیة (مرقاة المفاتیح: څلورم ټوک – ۲۹۲ مخ).

[3] والافضل في الزکوة والفطر والنذور الصرف اولا الی الاخوة والاخوات ثم الی اولادهم ثم الی الاعمام والعمات ثم الی اولادهم ثم الی الاخوال والخالات ثم الی اولادهم (هندیه: اول ټوک – ۱۸۷ مخ).

[4] و یشترط ان یکون الزکوة تملیکا لا اباحة (ردالمحتار: دوهم ټوک - ۳۶۴ مخ).

[5] واما قوله تعالی و في سبیل الله، عبارة عن جمیع القرب فیدخل فیه کل من سعی في طاعة الله وسبیل الخیرات اذا کان محتاجا (بدائع: دوهم ټوک – ۱۵۴ مخ)، (و في فتاوی محمودیه: نهم ټوک – ۵۴۶ مخ).

## د سيد و سيد ته زكوة وركول:

كه يو سيد مالداره او غني وي نو خپل زكوة و بل غريب سيد ته صحيح او حق طريقه دا ده چي نه سي وركولای[1].

## په صدقه جاريه كي زكوة مصرفول:

د زكوة د ادا كولو لپاره د زكوة مستحق مالك جوړول ضروري دي ځكه نو په داسي كارو كي چي هلته ملكيت نه راځي زكوة مصرفول نه صحيح كېږي[2].

## حضرت عبدالله ابن مبارك رحمة الله عليه او د زكوة استعمال:

حضرت عبد الله ابن مبارك رحمة الله عليه به همېشه خپل زكوة او خيرات پر اهل علم باندي مصرفوی او دا به ئې ويل چي زه د نبوت تر درجې وروسته د علماوو درجه لوړه وينم، ځكه چي كه اهل علم تنګدست سي د دين خدمت نه سي كېدلای نو په دې وجه د دين په كار كي تاوان او كمزوري راځي ځكه نو هغوی د علمي خدمت لپاره فارغ كول تر ټولو افضل او ښه كار دئ[3].

## په كميشن كي د زكوة پيسې وركول:

په اوسني وخت كي ډېر داسي كېږي چي يو نفر مثلاً د كندهار څخه ۱۰۰۰ افغانۍ كابل ته استوي د ده څخه ۲۰۰ افغانۍ كميشن اخيستل كېږي كه يو څوک دغه ۲۰۰ افغانۍ په زكوة كي وركوي زكوة ئې نه

---

[1] ولا الى بني هاشم ظاهر المذهب اطلاق المنع وقول العيني والهاشمي يجوز دفع زكوته لمثله و صوابه لايجوز (درمختار: دوهم ټوک - ۳۵۰ مخ).

[2] و يشترط ان يكون الصرف تمليكا لا اباحة (درمختار: دوهم ټوک – ۳۴۴ مخ).

[3] و كان ابن المبارك يخصص بمعروفه اهل العلم فقيل له لو عممت فقال انى لا اعرف بعد مقام النبوة أفضل من مقام العلماء (احياء العلوم الدين: اول ټوک – ۲۹۹ مخ).

صحیح کېږي او ۲۰۰ افغانۍ به نوري د زکوة ادا کړي[1].

**د زنا څخه پیدا سوي اولاد ته زکوة ورکول:**

که یو څوک د یوې ښځي سره زنا وکړي او په زنا سره اولاد پیدا سي نو دغه زنا کار سړی و خپل حرامي اولاد ته زکوة نه سي ورکولای[2].

**پوروړی ته زکوة ورکول ښه دئ که فقیر ته:**

د پوروړی څخه پور لیري کول او کومک ورسره کول او زکوة ورکول ښه او بهتر دي تر زکوة ورکولو و فقیر ته[3].

**خپلي میرې ته زکوة ورکول:**

میره نه په اصولو کي داخله ده او نه په فروعو کي ځکه نو زکوة ورکول صحیح دي[4].

**کونډو او یتیمانو ته چي میراث پاته سي نو زکوة ...:**

که د میراث مال دومره ورپاته سوی وي چي پر وارثانو تقسیم سي د هر یوه حصه د دوپنځوس نیمو تولو سپینو زرو قیمت ته رسېږي بیا زکوة پر واجب دئ او پر کوچنیانو چي بلوغ ته نه وي رسېدلي زکوة واجب نه دئ[5].

**مسکین ته د زکوة په پیسو ټکټ رانیول:**

که یو څوک خپل زکوة په داسي طریقه ادا کړي چي پیسې خو

---

[1] فتاوی رحیمیه: ۱-۲ټوکونه- ۱۷۲مخ).

[2] کمالایجوز دفع زکاة الزاني لولده منه اي من الزنا (درمختار: دوهم ټوک- ۳۵۴ مخ).

[3] و منها الغارم وهو من لزمه او کان له مال علی الناس لایمکنه اخذه والدفع الی من علیه الدین اولی من الدفع الی الفقیر (هندیه: اول ټوک- ۱۸۸ مخ).

[4] و یجوز دفعها لزوجة ابیه وابنه و زوج ابنته (ردالمحتار: دوهم ټوک- ۳۴۶مخ).

[5] آپ کے مسائل اور ان کا حل: دریم ټوک- ۳۶۹ مخ).

مسکینانو ته نه ورکوي مګر کوم ځای ته چي دوی سفر کوي خپل نفر ورسره لېږي او د هغه ځای ټکټ ور رانیسي نو په داسي طریقه زکوٰة ادا کېږي او که د یو عذر په خاطر هغه مسکین د سفر څخه پاته سي ټکټ بېکاره سي نو بیا هم زکوٰة ادا سو[۱].

**که د یوچا امدني ډېره وي مګر بیا یې هم ګزاره نه کېږي:**

که د یو چا آمدني ډېره وي مګر د هغه کورني اخراجات په دغه آمدني سره نه پوره کېږي او ټول کال پوروړی وي نو کورني اخراجات هغه وخت اعتبار لري چي د شریعت په حدود کي وي غیر شرعي او د اسراف اخراجات اعتبار نه لري نو که دغه سړی د مصرف کولو وروسته بیا هم د نصاب په اندازه پیسې ونه لري زکوٰة ورکول روا دي[۲].

**د مدرسې سفیر د زکوٰة پیسې نسي استعمالولای:**

د زکوٰة پیسې سفیر خرڅولای نه سي ده ته په کار ده چي په پور ئې واخلي او یا ئې د بل چا څخه را وغواړي[۳].

**سیدانو ته زکوٰة ورکول:**

سیدانو ته د زکوٰة ورکولو په باره کي شاید ډېر څه ویل سوي وي او یا وویل سي خو زموږ د معلوماتو او تحقیق وروسته موږ دې نتیجې ته رسېدلي یو چي په موجوده زمانه کي هم سیدانو ته زکوٰة ورکول روا نه دي او پر دغه قول فتوی ده ځکه چي په حدیث شریف کي د سیدانو لپاره

---

[۱] وشرط صحة ادائها نية مقارنة .... الا اذا وكله الفقراء لانه كلما قبض شيئا ملكوه ... (درمختار مع ردالمحتار: دوهم ټوک – ۲۶۹ مخ).

[۲] و ذكر في الفتاوى فيمن له حوانيت ودور للغلة لكن غلتها لاتكفيه وعياله انه فقير ويحل له اخذ الصدقة عند محمد رحمة الله عليه (ردالمحتار: دوهم ټوک - ۳۴۸ مخ).

[۳] فتاوی رحیمیه: ۷ – ۸ ټوکونه – ۱۸۲ مخ).

د زکوة د حراموالي علت او ساخ الناس (د خلکو د مالو خیره) بیان سوي دي دا علت چي د بیت المال څخه وظائف مقرر وه اوس نسته په حدیث شریف کي نه دي بیان سوي او دغه علت او ساخ الناس اوس هم سته او د سیدانو لپاره د زکوة د حراموالي حکم هم سته او ترنن ورځي پوري باقي دئ او په دغه حکم کي احتیاط دئ او د سیدانو احترام او اکرام هم په دغه کي دئ، او بل دا چي اغنیاوو ته پکار ده چي د سیدانو خدمت په تبرعاتو او نېکیو سره وکړي زکوة خو خیره او خراب مال دئ او د سیدانو حالت او شان تر دې ډېر لوړ دئ چي په دوی باندي خیره وخوړل سي او دا خبره صحیح نه ده چي په ځینو حالاتو کي زکوة ورکول سیدانو ته مباح دئ.

په دې باره کي زموږ سره د احادیثو او د حنفي فقهي د معتمدو کتابونو ډېري حوالې سته خو یو څو ستاسو په خدمت کي لیکو[1]:

---

[1] قال قال رسول الله ﷺ ان هذه الصدقات انماهي اوساخ الناس و انها لاتحل لمحمد ولا لآل محمد (صحیح المسلم: اول ټوک – ۳۴۵ مخ).
قال میرک فیه دلیل على ان الصدقة تحرم علیه وعلى آله ... و هذا هو الصحیح عندنا ... ولاتدفع الى بني هاشم هذا ظاهر الروایة (مرقاة المفاتیح: څلورم ټوک – ۲۸۹ مخ).
اطلق الحکم في بني هاشم ولم یقید بزمان ولا بشخص للاشارة الى الرد على ابي عصمة عن الامام انه یجوز الى بني هاشم في زمانه وللاشارة الى الرد على روایة انه لایجوز للهاشمي ان یدفع زکوته الى مثله لان ظاهر الروایة المنع مطلقا (البحرالرائق: دوهم ټوک – ۴۳۱ مخ)، (وکذا في ردالمحتار: دوهم ټوک – ۳۵۰ مخ) (و کذا في الهدایه: دوهم ټوک – ۷۵ مخ - وکذا في الهندیه: اول ټوک – ۱۸۹ مخ – و کذا في فتاوی رحیمیه: ۷ – ۸ ټوکونه – ۱۸۲ مخ).
(وکذا في فتاوی محمودیه: نهم ټوک – ۵۵۲ مخ). (وکذا في فتاوی دارالعلوم: شپږم ټوک – ۲۳۹ مخ).











Afghanistan

Question: 8911

کیا اس دور میں حالات اور شرائط کو Π مدنظر رکھتے ہوے سادات کو زکات دینا کیسا ہے؟ مکمل اور مفصل مع حوالہ جات کتب جواب دیکر عنایت فرمائیں تاکہ علماء اس بارے میں اختلافات سے بچ سکے. سوال نمبر۲. اس دور میں زکات کا کون سا نصاب معتبر ہے چاندی کا یا سونے کا؟ اگر چاندی کا نصاب معتبر ہے تو اس قول کا کیا مطلب ہے؟ وفيها سئل محمد عمن له ارض يزرعها او حانوت يستغلها او دار غلتها ثلاثة آلاف ولا تكفي لنفقته ونفقة عياله سنة؟ يحل له اخذ الزكاة وانكانت قيمتها تبلغ الوفًا وعليه الفتوى وعندهما لا يحل. ص۳۴۷ ج۳ ردالمحتار، مطلب في الحوائج الاصلية، كتاب الزكاة. اطمینان بخش جواب مع دلیل دیکر ممنون فرمائیں.

20 Nov, 2008

Answer: 8911

فتوی: 2015=1865/د

سادات (بنی ہاشم) کے لیے زکاۃ و صدقات کی رقم استعمال کرنا جائز نہیں ہے: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم إن ہذه الصدقات إنما هي أوساخ الناس وإنہا لا تحل لمحمد ولا لآل محمد رواه مسلم (مکشکاۃ:۱۶۱)

(۲) چاندی یا سونے میں سے کسی ایک کے نصاب کو پہنچ جائے تو حولانِ حول کے بعد زکاۃ فرض ہوجائے گی، جو عبارت حوالہ میں پیش کی گئی ہے اس میں زمین، دکان، مکان کا ذکر ہے جو تینوں اموال زکاۃ میں سے نہیں ہیں، ہاں ان کی آمدنی جو اخراجات کے بعد بچے اگر بقدر نصاب ہوجائے گی تو آمدنی پر زکاۃ واجب ہوگی، محولہ عبارت میں آمدنی نفقہ عیال سے زاید نہیں ہورہی ہے، اس لیے وجوب زکاۃ کا حکم نہیں ہوگا۔ خود مکان، دکان، زمین اموال زکاۃ میں سے نہیں ہیں، اس لیے مانع اخذ زکاۃ نہیں بنیں گی۔

اعلم واللہ تعالیٰ

دیوبند دارالافتاء، دارالعلوم

**ديني طالب العلم د زكوة بهترين مصرف دئ:**

په ديني مدرسو كي چي شپه او ورځ كوم طالبان اوسېږي او د دنيا و كارونو ته ډېره كمه توجه كوي، تر نورو كسانو دغه طالبانو ته زكوة وركول ښه دي[۱].

**په قرآن كريم كي د زكوة مصارف، اقسام او تعريف:**

په قرآنكريم كي د زكوة مصارف يا مستحقين اته قسمه ښودل سوي دي او د هر قسم تعريف به درته بيان كړو[۲]:

**اول**: **فقير**: هغه چا ته ويل كېږي چي يو څه شی ولري خو نصاب ته نه وي رسېدلی او د خلګو څخه سوال نه كوي[۳].

**دوهم**: **مسكين**: هغه چا ته ويل كېږي چي هيڅ هم نه لري او خلګو ته د سوال كولو لپاره مجبور سي[۴].

**دريم**: **العاملين عليها**: هغه خلګ دي چي اميرالمؤمنين ئې د صدقاتو او عشر وصولولو لپاره مقرروي خو دوی ته د دغو صدقاتو څخه دومره مال وركول سي چي د دوی د عمل او محنت موافق وي[۵].

**څلورم**: **والمؤلفة قلوبهم**: هغه خلګ دي چي نبي كريم ﷺ د دوی د زړه

---

[۱] التصديق على الفقير العالم افضل من التصدق على الجاهل (هنديه: اول ټوک – ۱۸۷ مخ).

[۲] إِنَّمَا ٱلصَّدَقَٰتُ لِلۡفُقَرَآءِ وَٱلۡمَسَٰكِينِ وَٱلۡعَٰمِلِينَ عَلَيۡهَا وَٱلۡمُؤَلَّفَةِ قُلُوبُهُمۡ وَفِي ٱلرِّقَابِ وَٱلۡغَٰرِمِينَ وَفِي سَبِيلِ ٱللَّهِ وَٱبۡنِ ٱلسَّبِيلِۖ فَرِيضَةٗ مِّنَ ٱللَّهِۗ وَٱللَّهُ عَلِيمٌ حَكِيمٞ (التوبة: ۶۰).

[۳] الفقير هو ذو الفقر والحاجة ومع حاجته يتعفف عن مسالة الناس والتذلل لهم (تفسير طبري: شپږم ټوک – ۳۹۶ مخ).

[۴] والمسكين هو المحتاج المتذلل للناس بمسالتهم (تفسيرطبري: شپږم ټوک – ۳۹۶ مخ).

[۵] والعاملين عليها، وهم السعاة لجباية الصدقة وهولاء يعطون من الصدقات بقدر اجور اعمالهم (تفسير كبير للرازي: شپږم ټوک – ۸۵ مخ).

د خوشحالۍ لپاره د زکوة مالونه ورکول او دغه خلګ د خپلو قبیلو سرداران او مشران وه[1].

**پنځم : وفي الرقاب :** هغه مریی چي خپل بادار ورته وایي چي ته دومره پیسې راکړه نو بیا ته آزاد یې دغه مریي ته مکاتب وایي او زکوة ورکول صحیح دي[2].

**شپږم : الغارمین :** هغه خلګ دي چي پر دوی باندي پورونه وي مګر د اداکولو انتظام ورسره نه وي[3].

**اووم : وفي سبیل الله :** امام ابو یوسف رحمة الله علیه فرمایي چي د دې څخه مجاهدین مراد دي او امام محمد رحمة الله علیه فرمایي چي د دې څخه حاجیان مراد دي او ځیني بیا وایي چي د دې څخه طالب علمان مراد دي چي بل کار نه کوي خو په دې شرط چي ټول به محتاج وي[4].

**اتم : وابن السبیل:** هغه مسافر ته وایي چي په سفر کي مال ورسره نه وي که څه هم په کور کي هر څومره مال ولري[5].

---

[1] والمؤلفة قلوبهم : قال ابن عباس هم قوم اشراف من الاحیاء اعطاهم رسول الله ﷺ یوم حنین (تفسیر کبیر للرازي : شپږم ټوک – ۸۵ مخ).

[2] المکاتبون المسلمون الذین لایجدون وفاء مایؤدون لسادتهم ولو مع القوة والتکسب (تفسیر منیر : پنځم ټوک – ۶۲۵ مخ).

[3] الغارمون وهم المدینون الذین رکبهم الدین ولا وفاء عندهم به (تفسیر منیر : شپږم ټوک – ۶۲۶ مخ).

[4] و في سبیل الله ارید بذلک عند ابي یوسف منقطعوا الغزاة وعند محمد منقطعوا الحجیج وقیل المراد طلبة العلم واقتصر علیه .. بجمیع القرب فیدخل فیه کل من سعی في طاعة الله تعالی و سبل الخیرات قال في البحر ولایخفی ان قید الفقر لابد منه علی الوجوه کلها (روح المعاني : ۹–۱۰ ټوکونه – ۴۳۸ مخ).

[5] وابن السبیل وهو المسافر المنقطع عن ماله (روح المعاني: ۹–۱۰ ټوکونه – ۴۳۸ مخ).

## سیدان کوم دي او د نبي کریم ﷺ خاندان:

دغه لاندي پنځه خاندان د نبي کریم ﷺ خاندان دئ او سیدان بلل کېږي:

**اول**: د حضرت علي رضي الله عنه اولادونه.

**دوهم**: د حضرت عقیل رضي الله عنه اولادونه.

**دریم**: د حضرت عباس رضي الله عنه اولادونه.

**څلورم**: د حضرت جعفر رضي الله عنه اولادونه.

**پنځم**: د حضرت حارث بن عبد المطلب اولادونه.

کوم سړی چي د دغو پنځو خاندانو څخه د هر نسل څخه یو چا ته زکوة ورکړي زکوة ئې نه صحیح کېږي او که هغه غریب او ضرورتمند وي نو د زکوة د پیسو څخه ماسوا دي په نورو پیسو د هغه مرسته وکړي[۱].



[۱] و لایدفع الی بني هاشم وهم آل علی و آل عباس و آل جعفر و آل عقیل و آل حارث بن عبد المطلب (هندیه: اول ټوک – ۱۸۹ مخ).

# اتم باب

# د زكوة متفرق مسائل

## د مالدار سړي كه نابالغ اولادونه غريبان وي :

كه چيري د غني سړي بالغ اولادونه غريبان وي د نصاب مالكان نه وي نو زكوة وركول جائز دي، او كه ئې اولادونه بالغان نه وي بيا زكوة وركول جائز نه دي[۱].

## كه د مالدار سړي ښځه غريبه وى :

كه د مالدار سړي ښځه غريبه او د زكوة مستحقه وي او خاوند ئې خرچه نه وركوي نو زكوة وركول جائز دي[۲].

## كه د مالدار سړي مور او پلار غريبان وي :

كه د مالدار سړي مور او پلار غريبان وي د نصاب مالكان نه وي نور خلك دوى ته زكوة وركولاى سي[۳].

## كه څوك في الحال صاحب نصاب نوي مګر زكوة اداء كړي :

كه يو سړى في الحال صاحب نصاب نه وي مګر اميد ئې دا وي چي مالداره به سم تر مخه زكوة ادا كړي دغه زكوة ئې ادا نه سو تر څو چي دومره اندازه مال پيدا سوى نه وي چي نصاب ته رسيږي او يا تر نصاب زيات وي او پر هغه كال تېر سي نو دوهم وار زكوة وركول فرض دي[۴].

---

[۱] و لا يعطى منها غنيا ولا ولد غني اذا كان صغيرا فان كان كبيرا فقيرا جاز الدفع اليه (تاتارخانيه: دوهم ټوک – ۲۰۵ مخ).

[۲] و يجوز الدفع الى امراة الغني اذا كانت فقيرة (تاتارخانيه: دوهم ټوک – ۲۰۵ مخ).

[۳] و يجوز صرفها الى الاب المعسر وان كان ابنه موسرا (هنديه: اول ټوک – ۱۸۹ مخ).

[۴] اما اذا عجل الزكاة ثم كمل النصاب بعد التعجيل فما عجل لايكون زكوة وانما كان تطوعا (تاتارخانيه: دوهم ټوک – ۱۹۱ مخ).

**د مالدار بې له اجازې د هغه د مال څخه زکوة اخیستل**:

که پر یو چا باندي زکوة واجب وي مګر نه ئې ادا کوي نو و بل مستحق نفر ته اجازه نسته چي د مالدار کس د مال څخه د هغه بې له اجازې د زکوة په نیت پیسې واخلي او که محتاج نفر پیسي واخیستلې نو مالک دا حق لري چي بیرته ئې ځني واخلي او که د محتاج نفر سره پیسې نه وي نو د دغه پیسو ضامن دئ چي مالک ته به ئې ورکوي[۱].

**څنګه مال په زکوة کي ورکول؟**

**اول**: که چیري ټول مال ښه وي نو په زکوة کي ښه مال ورکول په کار دي او که ټول مال خراب وي نو خراب مال دي په زکوة کي ورکول سي او که یو څه مال ښه وو او یو څه خراب وو نو په زکوة کي متوسط مال ورکول په کار دي[۲].

**دوهم**: او که ئې د لوړي درجې د مال زکوة د کښتي درجې د شیانو څخه ورکړی نو چي څومره کمي راغلې ده د هغه به قیمت ورکړي تر څو چي په زکوة کي کموالي رانه سي[۳].

**دریم**: او که ئې د کښتي درجې د مال زکوة د لوړي درجې د شیانو

---

[۱] و اذا وجبت الزکاة علی رجل وهو لا یؤدیها لایحل للفقیر ان یاخذ من ماله بغیر علمه و ان اخذ کان لصاحب المال ان یسترد ان کان قائما و ان کان هالکا یضمن لان الحق لیس لهذا الفقیر بعینه (تاتارخانیه: دوهم ټوک – ۲۱۶ مخ).

[۲] والمصدق لایاخذ الا الوسط وهو اعلی الادنی وادنی الاعلي ولو کله جید فجید (درمختار: دوهم ټوک – ۲۸۶ مخ).

[۳] فان ادی المنصوص علیه من الشاة ... یراعي فیه صفة الواجب وهو ان یکون وسطا فلایجوز الردي الاعلی طریق التقویم فیقدر تقویمه (بدائع: دوهم ټوک – ۱۴۶ مخ).

 څخه ورکړی نو چي څومره زیاتوب وي د هغه قیمت وضع کولای سي[۱].

**که یوازي مور سیده وي نو:**

که د یو نفر یوازي مور سیده وي پلار ئې سید نه وي او دی غریب وي د زکوة مستحق وي نو زکوة ورکول جائز دي ځکه چي نسب د پلار له لوري ثابتېږي نه د مور له لوري نو یوازي د مور په سادت سره اولادونه نه سیدان کېږي[۲].

**د تېرو کلونو شرعاً زکوة ادا سوی نه وي نو ...:**

د تېرو کلونو زکوة چي ادا سوی نه وي نو د هغه د اداکولو یوازي دغه صورت دئ چي د هر کال فکر دي وکړي چي تخمیناً څومره سرمایه وه بیا دي زکوة ورکړي[۳].

**وکیل خپل نائب ټاکلای سي:**

که یو چا و بل چا ته د زکوة پیسې ورکړې چي مستحقو کسانو ته ئې ورکړه او وکیل ئې وټاکی نو دغه وکیل اختیار لري که خپله دغه پیسې پر غریبانو تقسیموي او که نائب ټاکي چي مستحقو افرادو ته ئې ورکړي او د نائب په ټاکلو کي د اصلي مالک اجازه ضروري نه ده[۴].

---

[۱] و لو ادی الجید جاز لانه ادی الواجب و زیادة وان ادی القیمة ادی قیمة الوسط فان ادی قیمة الردي لایجوز الا بقدر قیمته وعلیه التکمیل (بدائع: دوهم ټوک – ۱۴۶ مخ).

[۲] ویؤخذ من هذا ان من کانت امها علویة مثلا و ابوها عجمي یکون العجمي کفوا لها وان کان لها شرف مالان النسب للاباء ولهذا جاز دفع الزکاة الیها (ردالمحتار: دریم ټوک – ۸۷ مخ).

[۳] فتاوی دارالعلوم دیوبند: شپږم ټوک – ۳۳۶ مخ).

[۴] للوکیل بدفع الزکاة ان یوکل غیره بلا اذن (ردالمحتار: دوهم ټوک – ۲۷۰ مخ).

## د کریډیټ (واحدونو) په ذریعه زکات ورکول:

که یو څوک و بل چا ته زکات په داسي طريقه ورکړي چي د خپل تليفون څخه واحدونه او يا پر کارټ باندي ليکل سوی نمبر د پيغام (مسيج) له لاري ورولېږي نو په دغه ډول ددغه نفر زکات نه صحيح کيږي ځکه چي په دې کي پوره ملکيت او اختيار نه راغلی یوازي منفعت راغلی او پیسې کمپنۍ والا یوړی نو په منفعت ورکولو باندي زکات نه صحيح کيږي.[1]

---

[1]: والمال كما صرح بيه اهل الاصول ما يتمول و يدخر للحاجة و هو خاص بالاعيان فخرج تمليک المنافع قال في الكشف الكبير: الزكاة لاتتادى الا بتمليک عين متقومة الخ. (البحرالرائق: دوهم ټوک۳۵۲ -مخ)

# نهم باب

# د سرسايې د مسائلو په باره کې يوه مفصله او مدلله رساله

## د سرسايې حکم په کوم کال وسو :

سرسايه د هجرت په دوهم کال واجب سوه دا هغه کال وو چې روژه هم په دغه کال کې فرض سوې وه خو وجوب ئې د زکوة تر مخه دئ[۱].

## په احاديثو سره د سرسايې اثبات :

**اول حديث** : د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دئ چې نبي کريم ﷺ سرسايه مقرره کړه تر څو روژه د لغو شيانو څخه پاکه سي او د مسکينانو ډوډۍ په وسي که چا د لمانځه تر مخه ادا کړه نو قبول سوى خيرات دئ او که چا تر لمانځه وروسته ادا کړه نو د خيراتو څخه يو خيرات دئ[۲].

**دوهم حديث** : د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روايت دئ چې نبي کريم ﷺ سرسايه مقرره کړه يوه پيمانه خورما يا يوه پيمانه اوربشي د مسلمانانو پر هر مريي او آزاد او پر هر نر او ښځه او پر هر کوچني او لوی او امر ئې وکړ چې سرسايه تر مخه تر دې چې خلک لمانځه ته ووزي ادا

---

[۱] شرعت زكاة الفطر في شعبان في السنة الثانية من الهجرة عام فرض صوم رمضان قبل الزكاة (فقه اسلامي :دريم ټوک – ۲۰۳۵ مخ).

[۲] عن ابن عباس ﷺ قال فرض رسول الله ﷺ زكوة الفطر طهرة للصيام من اللغو والرفث وطعمة للمساكين من ادا ها قبل الصلوة فهي زكوة مقبولة ومن ادا ها بعد الصلوة فهي صدقة من الصدقات (سنن ابي داؤد :اول ټوک – ۲۲۵ مخ).

سي[۱].

**د سرسایې حکمتونه او فایدې:**

**اول**: د روژې د تاوان جبیره.

**دوهم**: د اختر په ورځ فقیران د سوال څخه راګرځول.

**دریم**: وکیع بن الجراح فرمایي چي سرسایه د روژې لپاره داسي ده لکه د لمانځه لپاره سجده سهوه لکه څنګه چي په سجده سهوه د لمانځه تاوان راګرځي همداسي په سرسایه سره د روژې تاوان راګرځي[۲].

**د سرسایې د وجوب شرطونه:**

**اول**: اسلام

**دوهم**: آزادي

**دریم**: د دومره نصاب ملکیت چي تر حوائجو اصلیه زیات وي خو د نصاب نما او ترقي ضروري نه ده[۳].

**د سرسایې سبب یا علت:**

د سرسایې سبب هر هغه سر (انسان) دئ چي کفالت ئې د بل چا پر غاړه وي او مکمل تصرف باندي ولري[۴].

---

[۱] عن ابن عمر رضي الله عنه قال فرض رسول الله ﷺ زكوة الفطر صاعا من تمر او صاعا من شعير على العبد والحر والذكر والانثى والصغير والكبير من المسلمين وامر بها ان تؤدي قبل خروج الناس الى الصلوة (صحيح البخاري: اول ټوک – ۲۰۴ مخ).

[۲] وحكمتها: جبر نقص الصوم واغناء الفقراء عن السؤال يوم العيد قال وكيع بن الجراح زكاة الفطر لشهر رمضان كسجدة السهو للصلوة تجبر نقصان الصوم كما يجبر السجود نقصان الصلاة (فقه اسلامي: دريم ټوک – ۲۰۳۷ مخ).

[۳] فيشترط لوجوبها امور ثلاثة الاسلام والحرية وملك النصاب الفاضل عن حاجته الاصلية (فقه اسلامي: دريم ټوک – ۲۰۳۷ مخ). له نصاب الزكاة وان لم ينم (فتح باب العناية بشرح النقاية: اول ټوک – ۵۵۰ مخ).

[۴] واما السبب فراس يلزمه مؤنته ويلي عليه ولاية كاملة (بدائع: دوهم ټوک – ۱۹۹ مخ).

## سرسایه پر چا واجب ده:

سرسایه پر هر هغه چا واجب ده چي آزاد وي مسلمان وي که کوچنی وي که لوی که نر وي او که ښځه که عاقل وي او که لېونی او هغه وخت چي د دومره نصاب خاوند وي چي تر حاجت اصلیه زیات وي (دوپنځوس نیمي تولې سپین زر او یا اووه تولې سره زره)[۱].

## د سرسایې فضیلت:

حضرت جریر رضي الله عنه فرمایي چي نبي کریم ﷺ وفرمایل چي د روژې میاشتي روژه د آسمانو او مځکي په منځ کي معلقه (بنده پاته) وي اسمان ته نه پورته کېږي تر څو چي سرسایه (صدقة الفطر) نه وي ادا سوی[۲].

## سرسایه څه وخت واجب ده:

د سرسایې د واجب کېدو وخت د اختر په ورځ د سپېدو راختلو وخت دئ مګر د سرسایې د ادا کولو وخت ټول عمر دئ[۳].

## په احادیثو کي چي د کومو شیانو ذکر نه وي نو سرسایه ...:

کوم شیان چي غیر منصوصي دي یعني په احادیثو کي ئې ذکر نه وي راغلی لکه ډوډی، وړه وغیره...په سرسایه ورکولو کي یې قیمت

---

[۱] واجمعوا على ان المسلمين مخاطبون بها ذكرانا كانوا او اناثا صغارا او كبارا عبيدا او احرارا (بداية المجتهد: ۲۲۲مخ). المالک المقدار النصاب فاضلاً عن حوائجه الاصلية ... (الاختيار لتعليل المختار: ۱ – ۳ ټوکونه – ۱۵۹مخ).

[۲] عن جرير رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ صوم شهر رمضان معلق بين السماء والارض ولا يرفع الا بزكاة الفطر (الترغيب والترهيب: دوهم ټوک – ۱۵۲مخ).

[۳] فصل: واما وقت وجوب صدقة الفطر فقد اختلف فيه قال اصحابنا هو وقت طلوع الفجر الثاني من يوم الفطر ... واما وقت ادائها فجميع العمر عند عامة اصحابنا ولاتسقط بالتاخير عن يوم الفطر (بدائع: دوهم ټوک – ۲۰٦مخ).

معتبر دئ[۱].

**په کومه اندازه چي سړی مال ولري نو... :**

کوم کسان چي په خپل ملکيت کي هيڅ ونه لري او يا خو تر نصاب کم شی ولري نو په شرعي اصطلاح کي هغه ته فقير او مسکين ويل کېږي او د زکوة او سرسايې مستحق دئ نو بې له عوضه به سرسايه ورکوي[۲].

**سرسايه کومو کسانو ته نه سي ورکول کېدلای؟**

سرسايه خپلو اصولو ته نه سي ورکول کېدلای لکه پلار، نيکه او داسي نور ... مور انا او داسي نور... او نه هم خپلو فروعو ته ورکول کېدلای سي لکه زوی، لور، لمسی، لمسۍ او داسي نور... او نه ئې خاوند خپل ښځي ته او نه ئې ښځه خپل خاوند ته ورکولای سي او د دوی څخه ماسوا نورو قريبانو ته ورکول کېدلای سي لکه ورور، خور او داسي نور...[۳].

**کوچني ته سرسايه ورکول:**

د مثال په ډول: که د يو نابينا سړي دومره کوچني زامن وي چي په راکړه ورکړه نه پوهېږي نو هغوی ته سرسايه نه سي ورکول کېدلای بلکي د هغوی سرپرست ته به ئې ورکوي او که هغوی پوهېدل ييا خپله هغوی

---

[۱] و ما لم ينص كذرة وخبز يعتبر فيه القيمة (درمختار: دوهم ټوک – ۳٦۴ مخ).

[۲] تمليک جزء مال عينه الشارع من مسلم فقير غيرهاشمي ... مع قطع المنفعة عن المملک من کل وجه (البحرالرائق: دوهم ټوک – ۳۵۲ مخ).

[۳] واصله وان علا وفرعه وان سفل ... اي لايجوز الدفع الي ابيه وجده وان علا و لا الى ولده وولدولده وان سفل ... بل كل صدقة واجبة لايجوزدفعها لهم ... كالكفارات وصدقة الفطر والنذور .... لان من سواهم من القرابة يجوز الدفع لهم ... (البحرالرائق: دوهم ټوک – ۴۲۵ مخ).

ته هم ورکول کېدای سي[۱].

## د اختر تر ورځي مخکي سرسایه ورکول:

که یو څوک سرسایه د اختر د ورځي تر مخه یا وروسته ادا کړي نو صحیح ده خو مستحب دا دئ چي د سهار تر لمانځه وروسته او د اختر تر لمانځه د مخه ادا سي[۲].

## کوم چا چي روژنه نه وي نیولې نو سرسایه ...:

کوم چا چي روژه نه وي نیولې نو پر هغه باندي هم سرسایه واجب ده[۳].

## د بالغ اولاد له طرفه بې له اجازې سرسایه ورکول:

که پلار د خپل بالغ اولاد له طرفه سرسایه ادا کوي نو د هغوی اجازه به وي مګر دا چي سرسایه په لږ او معلوم مقدار کي ده او عادة د هغوی اجازه وي نو استحساناً دا کار روا دئ[۴].

## ټوله سرسایه یوه فقیر ته ورکول که جلا جلا:

د یوه نفر سرسایه ډېرو مسکینانو ته وېشل یا د ډېرو نفرو سرسایه یوه مسکین ته ورکول روا دي[۵].

---

[۱] وصدقة الفطر كالزكاة في المصارف (البحر الرائق: دوهم ټوک – ۴۴۶ مخ).

[۲] ويستحب اخراجها قبل الخروج الى المصلى بعد طلوع فجر عملا بامره وفعله عليه السلام وصح اداؤها اذا قدمه او اخره (درمختار: دوهم ټوک – ۳۶۷ مخ).

[۳] فتاوى رحيميه: ۷ – ۸ ټوکونه – ۱۹۶ مخ).

[۴] لا عن زوجته وولده الكبير العاقل ولو ادى عنهما بلا اذن اجزا استحسانا للاذن عادة (درمختار: دوهم ټوک – ۳۶۳ مخ).

[۵] وجاز دفع كل شخص فطرته الى مسكين .... كما جاز دفع صدقة جماعة الى مسكين واحد بلا خلاف (درمختار: دوهم ټوک – ۳۶۷ مخ).

**د مسجد امام ته سرسایه ورکول:**

که د مسجد امام د نصاب خاوند وي نو د امامت په عوض کي سرسایه ورکول جائز نه ده او که صاحب نصاب نه وي بیا جواز لري البته په مزدوري کي ورکول جائز نه ده[۱].

**قرض د سرسایې په عوض کي معافول:**

که د یو چا پر بل چا قرض وي نو دغه قرض په سرسایه کي نه سي معافولای ځکه چي سرسایه واجب ده او تملیک پکښې شرط دئ[۲].

**ورور او خور ته سرسایه ورکول:**

د اصولو او فروعو څخه ماسوا نورو ټولو قریبانو ته ټوله صدقات که زکوة وي که سرسایه وي ورکول کېدلای سي[۳].

**سرسایه بل ښار یا کلي ته استول:**

لکه څرنګه چي زکوة بې له ضرورته بل ښار ته وړل مکروه دي همدارنګه سرسایه هم وړل مکروه ده البته که د بل ښار خلګ تر دې ښار ډېر حاجتمند وي او یا ئې قریبان هلته وي بیا پروا نه لري[۴].

**بندیانو ته سرسایه ورکول:**

که چیري په بندي خانه کي بندیان غریبان او مسکینان وي نو

---

[۱] و مصرف هذه الصدقة ماهو مصرف الزکاة (هندیه: اول ټوک – ۱۹۴ مخ).

[۲] و یشترط ان یکون الصرف تملیکا (درمختار: دوهم ټوک – ۳۴۴ مخ).

[۳] والافضل في الزکاة والفطر والنذور الصرف اولا الی الاخوة والاخوات ثم الی اولادهم ثم الی الاعمام والعمات ... (هندیه: اول ټوک – ۱۹۰ مخ).

[۴] ویکره نقل الزکوة من بلد الی بلد الا ان ینقلها الانسان الی قرابته او الی قوم هم احوج الیها من اهل بلده (هندیه: اول ټوک – ۱۹۰ مخ).

سرسايه ورکول جائز ده[۱].

**سرسايه د کومو شيانو څخه ورکول کېږي؟**

سرسايه د څلورو شيانو څخه ورکول کېدای سي غنم، اوربشي، خورما او وچکي[۲].

**د سرسايې اندازه:**

سرسايه به يا نيمه پيمانه غنم وي يا به يوه پيمانه اوربشي يا به يوه پيمانه خورما وي[۳].

چي دغه اندازې د کيلو ګرام په اندازه داسي دي:

| شماره | د شيانو نوم | مقدار |
|---|---|---|
| ۱ | وچکي | دري نيم کيلو |
| ۲ | خرما | دري نيم کيلو |
| ۳ | اوربشي | دري نيم کيلو |
| ۴ | غنم | احتياطاً دوه کيلو |

**که مال هلاک سي بيا هم سرسايه واجب ده:**

سرسايه که څه هم مال هلاک سي بيا هم واجب ده ځکه چي د

[۱] هي تمليک المال من فقير مسلم ... (کنز الدقائق على هامش البحر الرائق: دوهم ټوک - ۳۵۲ مخ).

[۲] وانما تجب صدقة الفطر من اربعة اشياء من الحنطة والشعير والتمر والزبيب (هنديه: اول ټوک – ۱۹۱ مخ).

[۳] وهي نصف صاع من بر او صاع من شعير او تمر ... واما الزبيب فقد ذکر ... والاحوط ان يراعي فيه القيمة هکذا في محيط السرخسي (هنديه: اول ټوک – ۱۹۱ مخ).

سرسايې تعلق د انسان سره دئ د مال سره نه دئ[۱].

## په سرسايه کي د غنمو او اوربشو اوړه ورکول:

د غنمو او اوربشو اوړه د غنمو او اوربشو حکم لري په اوړو کي ئې هم نيمه پيمانه يا يوه پيمانه ده مګر د غنمو او اوربشو په ډوډۍ کي قيمت معتبر دئ[۲].

## که د کوچني اختر په شپه څوک مړ سي نو ...:

که يو څوک د صبح صادق تر مخه وفات سي نو سرسايه پر واجب نه ده او که څوک تر صبح صادق وروسته وفات سي بيا سرسايه پر واجب ده[۳].

## که يو کوچني تر سپېدو دمخه يا وروسته پيدا سو نو ...:

که يو کوچني تر سپېدو دمخه پيدا سو نو سرسايه پر واجب ده او که تر سپېدو وروسته پيدا سو بيا سرسايه پر واجب نه ده[۴].

## د مور او پلار سرسايه پر چا واجب ده؟

د مور او پلار سرسايه پر بالغ اولاد باندي لازمه نه ده که څه هم د غه بالغ اولاد مور او پلار ته نفقه ورکوي[۵].

---

[۱] والفرق: ان صدقة الفطر تتعلق بالذمة وذمته قائمة بعد هلاک المال فکان الواجب قائما والزکاة تتعلق بالمال فتسقط بهلاکه (بدائع: دوهم ټوک – ۲۰۸ مخ).

[۲] ودقيق الحنطة والشعير وسويقهما مثلهما والخبز لايجوز الا باعتبار القيمة وهو الاصح (هنديه: اول ټوک – ۱۹۱ مخ).

[۳] فمن مات قبل ذلک لم تجب عليه الصدقة ... و من مات بعد طلوع الفجر فهي واجبة عليه (هنديه: اول ټوک – ۱۹۲ مخ).

[۴] ومن ولد او اسلم قبله وجبت ومن ولد او اسلم بعده لم تجب (هنديه: اول ټوک – ۱۹۲ مخ).

[۵] ولايلزم الرجل الفطرة عن ابيه وامه وان کانا في عياله لانه لاولاية له عليهما (هنديه: اول ټوک – ۱۹۳ مخ).

## د کوچني اولادونو سرسایه:

که څوک دومره مال ولري چي نصاب ته رسېږي يا زيات وي نو دخپل ځان او کوچني اولادو له طرفه سرسايه ورکول واجب ده البته که کوچني اولادو خپل مال درلودی بيا به ئې د هغوی د مال څخه سرسايه اداکوي[۱].

## د خپلي کوروالا له طرفه سرسايه ادا کول:

پر خاوند باندي د ښځي له طرفه څخه سرسايه ادا کول لازم نه دي البته که د دې له طرفه څخه سرسايه ادا کړي نوجائز ده که څه هم د ښځي بې له اجازې وي[۲].

## پر مشر ورور باندي د کشر ورور او خور سرسايه :

پر مشر ورور باندي د کوچني ورور او خور سرسايه واجب نه ده که څه هم مشر ورور دغه خور او ورور ساتي[۳].

### الحمدلله ختم ئې د روژې مبارک ۲۱ ورځ، سهار ٦ بجې

## مآخذ او مراجع

| شماره | کتاب | طبع |
|---|---|---|
| ۱ | روح المعاني | رشيديه کوئټه |

---

[۱] يخرجها عن نفسه وعن اولاده الصغار .... اذا كان له مال يخرج من ماله والا فمن مال نفسه (التسهيل الضروري: ۱ -۲ ټوکونه – ۱۲۴ مخ).

[۲] و لو ادى عنهما بلا اذن اجزا استحسانا للاذن عادة (درمختار: دوهم ټوک – ۳٦۳ مخ).

[۳] ولايجب ان يؤدي عن اخوته الصغار ولاعن قرابته وان كانوا في عياله كذا في فتاوى قاضيخان (هنديه: اول ټوک – ۱۹۳ مخ).

| شماره | کتاب | طبع |
|---|---|---|
| ٢ | تفسير منير | رشيديه كوئٹه |
| ٣ | تفسير كبير للرازي | مكتبه علوم الاسلامية لاهور |
| ۴ | تفسير طبري | دار الكتب العلمية بيروت |
| ۵ | احكام القران للجصاص | قديمي كراچي |
| ٦ | صحيح البخاري | قديمي كراچي |
| ٧ | صحيح المسلم | قديمي كراچي |
| ٨ | سنن ابي داؤد | مير محمد كتب خانه كراچي |
| ٩ | جامع الترمذي | رحمانيه لاهور |
| ١٠ | عرف الشذي على الترمذي | رحمانيه لاهور |
| ١١ | مصنف ابن ابي شيبة | المجلس العلمي بيروت |
| ١٢ | زاد المعاد | مؤسسة الريان بيروت |
| ١٣ | الترغيب والترهيب | دار الفجر قاهرة |
| ١۴ | فيض القدير | دار الكتب العلمية بيروت |
| ١۵ | فتح الباري | قديمي كراچي |
| ١٦ | مرقاة المفاتيح | رشيديه كوئٹه |
| ١٧ | الزواجر عن اقتراف الكبائر | دار الحديث قاهرة |
| ١٨ | مجمع الزوائد | دار الكتب العلمية بيروت |
| ١٩ | نصب الرايه | حقانيه پشاور |
| ٢٠ | مشكاة المصابيح | امير حمزه كتبخانه كوئٹه |
| ٢١ | المبسوط للسرخسي | رشيديه كوئٹه |
| ٢٢ | الكفايه | رشيديه كوئٹه |
| ٢٣ | مجمع الانهر | غفاريه كوئٹه |
| ٢۴ | الاشباه والنظائر | قديمي كراچي |
| ٢۵ | فتح باب العناية بشرح النقايه | ايچ ايم سعيد كراچي |
| ٢٦ | بداية المجتهد | رشيديه كوئٹه |
| ٢٧ | الاختيار لتعليل المختار | قديمي كراچي |
| ٢٨ | كنز الدقائق | رشيديه كوئٹه |
| ٢٩ | البحر الرائق | رشيديه كوئٹه |
| ٣٠ | بدائع الصنائع | رشيديه كوئٹه |
| ٣١ | الفقه الاسلامي وادلته | رشيديه كوئٹه |

| ٣٢ | خلاصة الفتاوى | رشيديه كوئٹه |
|---|---|---|
| ٣٣ | مجموعة الفتاوى | رشيديه كوئٹه |
| ٣۴ | الهندية | رشيديه كوئٹه |
| ٣۵ | البزازية | رشيديه كوئٹه |
| ٣۶ | شرح الوقاية | رشيديه كوئٹه |
| ٣٧ | فتح القدير | رشيديه كوئٹه |
| ٣٨ | العناية على هامش فتح القدير | رشيديه كوئٹه |
| ٣٩ | مراقي الفلاح | رشيديه كوئٹه |
| ۴٠ | حاشية الطحطاوي | رشيديه كوئٹه |
| ۴١ | التاتارخانية | رشيديه كوئٹه |
| ۴٢ | ردالمحتار | ايچ ايم سعيد كراچي |
| ۴٣ | الجوهرة النيرة | قديمي كراچي |
| ۴۴ | الخانية | رشيديه كوئٹه |
| ۴۶ | الهداية | مكتبة البشرى كراچي |
| ۴٧ | النتف في الفتاوى | عثمانية كوئٹه |
| ۴٨ | نورالانوار | رشيديه كوئٹه |
| ۴٩ | التسهيل الضروري | فاروقيه لاهور |
| ۵٠ | احياء علوم الدين | دارالارقم بيروت |
| ۵١ | فتاوى محموديه | فاروقيه كراچي |
| ۵٢ | امداد الفتاوى | مكتبه دارالعلوم كراچي |
| ۵٣ | كفايت المفتي | دارالاشاعت كراچي |
| ۵۴ | فتاوى رحيميه | دارالاشاعت كراچي |
| ۵۵ | فتاوى دارالعلوم ديوبند | دارالاشاعت كراچي |
| ۵۶ | احسن الفتاوى | ايچ ايم سعيد كراچي |
| ۵٧ | آپ کے مسائل اور ان کا حل | مكتبه لدهيانوي كراچي |
| ۵٨ | فتاوى فريديه | اهتمام واشاعت حافظ حسين احمد پشاور |
| ۵٩ | فتاوى حقانيه | اكوڑه خٹک پشاور |
| ۶٠ | فتاوى عثماني | مكتبه معارف القران كراچي |
| ۶١ | فقهي مقالات | ميمن پبليشرز كراچي |
| ۶٢ | زکات کے مسائل کا انسائیکلوپیڈیا | بيت العمار كراچي |
| ۶٣ | مسائل رفعت قاسمي | الفلاح لاهور |

